# کندهار

د ۱۳۹۳ش کال شپږمه ګڼه
(دلو - حوت)

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه



## زموږ څېړونکي څه وايي؟

"متون د ژبې د څېړنې له پاره اومه مواد دي. که دا مواد په خپله اصلي بڼه خپاره نه سي ژبپوه به څرنګه وکولای سي د هغه شاعر یا لیکوال د عصر پر ژبه قضاوت وکاندي چي کلام ئې زموږ مصححینو د نن ورځي پر ژبه باندي برابر خپور کړی وي" (استاد هوتک)

استاد غضنفر

# د تظاهر لومه

د کندوز د بزکشی میدان د انګلیسي (U) توري ته ورته دئ. درې خواوو ته ئې غونډۍ دي او يوه خوا ئې پرانيستې ده. زه چې ماشوم وم د پرانيستې خوا د مقابل لوري پر غونډۍ باندي پخې برنډې ودانې وې چې خلک او په تېره مېلمانه پکښې د بزکشۍ سيل ته کښېني. د دغو برنډو له سمنټې چوکيو به په پرانيستې خوا کي له ميدانه بهر د يوه کلي خړ دېوالونه ښکارېدل. يو کال مي يادېږي چې ناڅاپه د کلي د دېوالونو سپينول پيل شول.

کيسه داسي وه چې يو خارجي مقام د اوزلوبي د سيل له پاره کندز ته راروان وو او حکومت غوښتل چې د وطن کلي ډېر وروسته پاته ورمعلوم نه شي نو د دېوالونو د سپينولو تابيا ئې کړې وه.

زه پر دې غږېږم چې دغه کار لازم وو که لازم نه وو، خو کله هم چې په ملي او اجتماعي کچه د ځان بل ډول ښودلو خبره ياده شي، همدا خاطره مي سترګو ته ودرېږي.

موږ په هغو هېوادونو کي هم سفارتونه لرو چې راکړه ورکړه او تګ راتګ مو ورسره نشته. زموږ ځيني وزارتونه د ځينو نورو په لسګونو ځله لوی دي، خو څرنګه چې پر هغو ورو ادارو مو هم د وزارت نوم ايښی دئ نو مختلف رياستونه مو پکښې جوړ دي چې ظاهري حساب ئې برابر وي.

بيا به هم د ماشومتوب يوه کيسه وکړم. زموږ په کوڅه کي يوه سپين ږيري حاجي يو خر اخيستی وو. د خره هينګاري ئې پر ګاونډي باندي ښې نه لګېدې. کوڅه والو د خره څښتن ته وويل: حاجي صاحب خر دي څه ته اخيستی دئ؟ حاجي وويل: وابنه ورباندي راوړم. کوڅه والو بله پوښتنه ورنه وکړه: وابنه څه کوې؟ حاجي ځواب ورکړ: خره ته ئې اچوم.

موږ ډېر ځله يوه اداره جوړوو چې وروسته بيا ورته بوديجه د دې له پاره مومو چې اداره خو بايد يو کار وکړي. بوديجه ځکه په کار ده چې اداره بې بوديجي نه چلېږي او اداره ځکه په کار ده چې بوديجه بايد د ادارې په ذريعه مصرف شي. (پاته د وقايې پر دريم مخ)






# کندهار


علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

دریمه دوره
د ۱۳۹۳ش کال شپږمه ګڼه (سلواغه - کب)
پرله پسې ٦٧ مه ګڼه


**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکنې نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.


**په هیواد او دباندي کې د مجلې بیې**

هیواد: ۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۵۰ - کلداري

**کلنۍ ګډون**

هیواد: ۱۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۳۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره





پته
علامه حبیبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست
د کندهار مجلې دفتر
ټلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

# فهرست

## ښېړنه



## شعرونه



## ترجمه



## خاطرې

د یادښت پر ځای:

# سږنی نشراتي کال

د ۱۳۹۳ش کال لومړی ګڼه مو له (حمل - ثور) څخه شروع او کالګڼه ئې دا دئ د (دلو - حوت) په میاشتو کي دروړاندي سوه.

زموږ له پاره تېر یو کلن نشراتي کال له څو اړخه د پام وړ وو، له یوې خوا مو غوښتل داسي څېړني او تحقیقات لوستونکو ته وړاندي کړو چي د موضوع په لحاظ نوي وي، د نوو څېړنو تر څنګ مو ژباړه هم له پامه نه ده ایستلې، د موضوع او تنوع په لحاظ مو نوي ژباړي پیدا کړي او خپرې کړي دي. وروستی برخه مو د مشرانو استادانو او ځوانو لیکوالو خاطرو ته ځانګړې کړې ده، چي په دې برخه کي د هغوی له تجاربو او نوښتونو څخه په خپلو راتلونکو کارونو کي استفاده وکړو او هم مو د خاطرات لیکني زوړ او له پامه لوېدلي حرکت ته یو ځل بیا ساه ورکړه.

د ځوانو شاعرانو شعرونه او تر څنګ ئې ځیني نثري ټوټې او نثري ترجمې هم د مجلې په بېلابېلو پاڼو کي لوستلای سی، په دې وروستیو ګڼو کي مو د نومیالیو پوهانو او محققینو سره د هغوی په تخصصي ساحه کي د مرکو لړی راپیل کړه، په دې مرکو کي زموږ لوستونکي کولای سي، چي د هغوی له پوهي او تجربو څخه په ټاکلې برخه کي استفاده وکړي.

زموږ ټولي هڅي د خپلي ژبي او خپل اصیل فرهنګ د ژوندي ساتلو او پاللو له پاره دي، په دې برخه کي مو تر خپله وسه کوښښ کړی دئ، چي د افغاني فرهنګ بېلابېل اړخونه د افغان لیکوالو او پوهانو د تحقیقاتو او څېړنو په رڼا کي روښانه کړو، خو په هر صورت انسان تر خپله وسه پړ دئ.

پرېکړه به لوستونکو ته پرېږدو، چي د خپلو نظریاتو په اظهار سره دا وښیي چي زموږ خواری څونه رنګ راوړی دئ، او په دې برخه کي خپل تعمیري نظریات وړاندي کړي، تر څو د دوی د نظریاتو په رڼا کي د نور پرمختګ او ښه والي له پاره استوار واوسو او په دې برخه کي هغه څه وکړو چي زموږ لوستونکي ئې غواړي.

کندهار مجله له ډېرو کلونو څخه د یوې داسي نشریې په توګه چي د دې سیمي د تاریخ او فرهنګ ګوښه و پیکه اړخونه ئې روښانه کړي دي، تر دې وروسته به هم دغه کار په پوره حوصله سره مخته وړي، خو دا کار هله شونی دئ، چي د یارانو یاري همداسي دوام وکړي لکه په سږني نشراتي کال کي.



ډاکټر عبدالرازق پالوال PH. D.

## د کندهار د منځنۍ ارغند ناوې

# دوې بې تاریخه او بې نوم و نښانه شاهۍ

لرغونپوهان Archaelogists چې د یوه لوښي اوز کودري یا لا کودرکي د یوې کنډواله یي غونډۍ په کیندنو کښي ومومي، نو د هغیو له شکل او جوړښت څخه په فهم سره د هغه لوښي بشپړ شکل سره پرله پوري کړي. ورک کودري ئې قیاساً پوري پټلپس کړي. نو کله چې د یوه بوده یا وګړي د ککرۍ اوز توکري په لاس ورسي، نو د هغیو د محدبو او مقعرو انحناوو له مخي څخه د هغه حیوان یا وګړي د ککرۍ توکري لړ ۋ ډېر پرله پوري او ترسیم کړي چې د هغه پخواني ژوي سر به په ژوندانه کښي څنګه ایسېدئ؟ نو له سر څخه ئې قیاس کوي چې نور بدن به ئې څنګه ؤ؟ د ککرۍ، لاس یا پښې دغسي اوز توکري د بدني بشرپوهاند Physical Anthropologist اسناد او شواهد دي چې د هغیو پر اساس باندي د پخواني ژوي د ککرۍ، سر او هم د نور بدن د جوړښت تصور کوي.

زه به د کندهار ښار ته څرمه ارغند ناوه کښي د یوې اویجي بې تاریخه شاهۍ پېژندنه هم دغسي سرسري ورغوم.

له لویه سره څخه د فرات راده په ختیځ کښې او د سیر راده په لوېدیځ کښې، له سیند راده څخه بیا د باسفورس تر آبنا پورې د پرثوانو (پښتنو) شاهانو قبیلوي شاهي وې، چې په عربي ژبه کښې ئې دغه ملوک الطوایف بللي ول. دغو قبیلوي شاهیو هم په خپلو منځو کښې ځله سټ ؤ چټ کړي دي، او هم د خپل منځي دښمنیو او بې اتفاقیو له اسیته څخه نورو دباندنیو مهاجمانو یرغلګرو پرله پسې ببخ ؤ بنیاد ورکښلئ دئ. دغو قبایلو چې پخوا ئې هري قبیلې په بېله سیمه او اوبچه کښې و ځانته شاهي لرله. د تاریخ په اوږدو کښې مغولانو، لکه تورکانو، چنګېزیانو، شمس الدین کرت، ګوډ تېمور، ظهیرالدین بابر او تر دوی لا هم دمخه عربو مسلمانانو پښتانه له خپلو پخوانیو سیمو او اویجو څخه تر ژوبلو او وژنو وروسته، قبیله په قبیله پسې وتښتول او راوشړل څو چې د لوی افغانستان په درو او دښتونو کښې ئې پناه واخسته او پاته قبایل ئې یو د بل په غېږ کښې یا په څنګ کښې سره ځایان سول. دوی لا تر اوسه پورې پر قبایلیت باندې لا ټینګ څه بل لا په نازېږي هم. دوی په خپلو قبیلوي مشرانو پسې چې هغوی ئې تر منځ د مخالفت، دښمنۍ او بې اتفاقۍ عامل لا هم ګرځېدلي دي، ویاړي او په نازېږي لا هم.

کله چې له سامانیانو څخه مرور تورکان تر هندوکش (کوش) ځنې راواوښتل، او د پښتنو تر منځ ئې په غزني کښې خپله خپلواکه بادشاهي ورته جوړه کړه، نو ئې یوې او بلې خوا ته بریدونه پیل کړل. قبیلوي پښتانه ئې یا تابع کړل، او یا ئې و غرونو ته پسې واخستل یا ځنې وختل. تابع کړي پښتانه ئې وروسته محمود غزنوي د کونړ درې له کافرانو سره وجنګول. په سر کښې ئې کندهاریان ول چې اوس په پېچ دره کښې ئې کلئ (کندرارو) نومیږي. ورپسې ودیر سپاهیان (صافیان) او مسود Masawad سپاهیان (صافیان) ځایان سوي دي، چې ودیر او مسود اوس په خپل پخواني وطن کښې وزیر او مسعود بلل کېږي. هغوی چې د محمود په سپاه کښې شامل سوي نه ول، او په خپل وطن کښې پاته ول. دغه نومؤنه ئې د عربي ژبې اغېز دئ.

په دغه لیکنه کښې د قبیلوي شاهیو بې اسنادو او بې شواهدو څرګندونه درکول کېږي. هیله ده چې تاریخ پوهان به ئې د سمون له پاره مستنده روڼا پر واچولای سي.

د کندهار د احمدشاهي ښار په ختیځه مخنۍ څنډه کښې، د لومړۍ بامیزو کوڅې د ختیځې خولې څخه، لږ څه د شمال و خوا ته یو اوږد قبر دئ. وګړي ئې شهید بابا بولي. د دغه قبر و شمال ته بل اوږد قبر دئ. وګړي هغه هم شهید بابا بولي. د دوی شهیدان بلنه دلالت پر دې باندې کوي چې دوی په جنګ کښې وژل سوي ول. خو له چا سره په جنګ کښې؟

پر همدغه برابري باندې، تر کلا دباندې اوز لنډ قبرونه سته. ښاریان وګړي به هغوی څه بولي چې څوک دي؟ د قبرونو لنډوالئ ئې دلالت پر دې باندې کوي چې یو – یو وژلئ پکښې ښخ دئ. او د کلا دننه اوږده قبرونه دلالت پر دې باندې کوي چې هغه کوټرم

قبرونه دي چې مانا ډېر وژلي ورپکښې ښخ دي. نو د دوی تر منځ به خود جنګ سوئ ؤ.

دغه دوه رازه قبرونه چې لنډ او اوږده دي، بل دلالت ئې دا دئ، چې دباندنیانو دننیانو ته په جنګ کښې ماته ورکړې ده.

دغه واقعیتونه ئې دلالت پر دې باندي کوي چې دوی څله دښمنان ول او پر دغه ځای باندي سره جنګېدلي دي.

اصلي پوښتنه دا ده چې یو څوک ول او بل څوک ول او مهمه دا ده چې له تاریخي پلوه څخه کله سره جنګېدلي ول؟

د دوی د قبرونو موقعیتونه دا ښووي چې دوی د کندهار د احمدشاهي کلا تر ودانېدلو دمخه سره جنګېدلي او وژل سوي دي. د موقعیت بل دلالت ئې دا دئ چې د اوږدو قبرونو وژلي د کندهار د زاړه ښار اوسېدونکي ول او د فردي قبرونو وژلي له ختیځ څخه ورغلي مهاجم او یرغلګر ول. دوی به هم خود د دې له پاره چې برید پر کړئ ؤ څو د کندهار ښار او سیمه ئې نیولې وي او هم به ئې نیولې وه.

پوښتنه دا ده چې د ختیځ له خوا څخه چا پر کندهار باندي هجوم راوړئ ؤ؟ لوی سکندر چې د منځني افغانستان له لاري څخه پر درنګا Daranga (قلات) باندي ورکښته سوئ ؤ، او له هغه ځایه څخه ئې د کندهار ښار نیولئ ؤ. په دغه ښار کښې ئې خپله سکندریه ودانه کړې وه. د دغې سکندریې تصویر پروفیسور فیشر په خپل کتاب (نیمروز) کښې چاپ کړئ دئ. سکندر له دغه ځایه څخه د ارغسان (اراخوزیا = اراخوسیا) له لاري څخه و غزني او کاوپورا (کابل) ته تللئ ؤ.

لوی سکندر د کندهار ښار ودان کړئ ؤ، نړولئ ئې نه ؤ. اوس نو بیا هم هغه پوښتنه چې د ختیځ له خوا څخه چا پر کندهار باندي برید کړئ ؤ؟ لوی سکندر ځکه کېدلای نه سي چې د دواړو خواوو قبرونه اسلامي دي او سکندر ښار هم ودان کړئ ؤ.

په اغلب احتمال سره به دغه د غزني الپ تګین او سبوک تګین ول. د کندهار ښار قبیلوي بادشاه له خپل لښکر سره تر ښار، په دې هیله وروتلئ ؤ، چې که ئې په میداني جنګ کښې ماته وکړه، و ښار ته به پر شا سي او ځان به کلابند کي. نو ښار ئې باید له لویه سره څخه کلابند سوئ نه وي، څو په خرمچلوغزي (فلخمان) سره، پر کورونو او خلګو باندي د کلا له ایسته خواوو څخه غرګیان اورول سوي نه وي.

ډېر ښایي چې شاه الپ تګین به د کندهار ښار له شاه سره جنګېدلئ ؤ. د دواړو خواوو مړي له دوی څخه پاته دي.

سبوک تګین چې د شاه الپ تګین سپاه سالار ؤ، دء به پر کندهار ښار باندي برید وروړئ ؤ، او ښار ئې بېله څه مقاومته څخه چور کړئ او کنډواله کړئ ؤ. دغه تاریخي واقعیت دئ چې د کندهار هغه ښار چې لوی سکندر ودان کړئ ؤ، له غزنوي ترکانو سره په جنګ کښې نړول سوئ ؤ.

د کندهار شاه په اغلب احتمال سره شاه حسیني، چې له یوې خوا ئې له الپ تګین څخه ماته کړې وه، له بلې خوا څخه ئې سبوک

تګین ښار ور چور کړئ او نړولئ ؤ، دی
مجبوریږي چي له خپل پاته لښکر سره د
پیرپایمال له لاري څخه و ارغند ناوې ته پناه
یوسي څو هورې ئې په ډېري اسانۍ سره د
ځان دفاع کړې وي.

پخوا و ارغند ناوې ته کوتلونه ډېر لوړ
ول، او څوک په اسانۍ سره تر ور اووښتلای نه
سوای. د مورچې کوتل ته سلطان غیاث الدین
غوري، کږه وږه، مارپېچه لار ورخېژولې وه.
دغه کوتلونه د ارغند ناوې له خوا څخه لوړ ول.

نو شاه حسیني له خپل لښکره سره
مجبور سوئ ؤ، چي و ارغند ناوې ته ورننوزي،
او هورې لنډ یا په ځنډ د ارغند ناوې له قبیلوي
شاه سره لتاړ سي.

کله چي ترمخنیو یا لا وړاندنیو تورکانو
له غزني څخه د الپ تګین او سبوک تګین تر
مشرتابه لاندي پر ترنک ناوې باندي برید
وکړ، او د دغي تر څپلو وروسته ئې د کندهار
ښار د جنګ او جګړو په ترڅ کښي په کنډوالو
سره اړولئ ؤ. پاته سوي خلګ ئې لکه د ترنک
ناوې اوسېدونکي د غور و غرونو ته ځني وختل
یا ځني وتښتېدل. دوی ترنک ناوه نامصئونه
کړه چي غزنوي تورکانو خپل کاروانونه او
لښکرونه د بوست هیلمند او د لوېدیځ و خوا ته
پر آرامه او سوونه بېولای نه سوای. ځکه نو
دوی د ځان او لښکرکښیو له پاره د ارغسان
ناوه وپرانیستله. دا ځکه چي ارغسانیانو د
خپل چاپېریال له اسیته څخه د ارغسان ناوه
ناامنه کولای نه سوای. ځکه نو غزنوي
تورکانو ژمی د هیلمند په بوست کښي تېراوء،
او دوبی ئې په غزني کښي ژوند کاوه. دوی چي
کندهار کنډواله کړئ ؤ، نو څوک پکښي
اوسېدلای هم نه سوای. بل دا چي دوی د
ارغسان ناوې له لاري څخه و هیلمند ته تګ
کاوء او بیرته تښتېدل. ځکه نو الپ تګین یا
سبوک تګین یا دواړو د ارغند راده پر غاړې
باندي چیري چي د ارغسان رود و ارغند راده
ته ورتوییږي، نو ئې له دغه مقطع سره یو نوی
ښار یا حکومتي مرکز د تګین آباد په نامه سره
آباد کړئ ؤ. چي پاتندویه ئې اوس زنګاوات
نومیږي.

کله چي غزنوي تورکانو د کندهار ښار تر
جنګ او مقاومت وروسته نیولئ او کنډواله
کړئ یا نړولئ ؤ. شاه ئې له خپل مات سوي
لښکر سره د پیرپایمال له لاري څه و ارغند
ناوې ته ځني پر شا سوئ ؤ. دا چي نو ولې
تورکان پسي ورغلي نه ول، دوی به ښایي د
کندهار ښار په نړولو سره بساینه کړې وه، یا به
و دوی ته هم ډېر تلفات رسېدلي ول، او د نور
جنګ و مخامختیا توان به ئې بایللی ؤ، ځکه به
ئې نو د کندهار شاه نور پسي اخستئ او ایسته
شړلئ نه ؤ.

شاه حسیني به د کندهار تر بایلني
وروسته و ارغند ناوې ته پر شا سوئ ؤ. داسي
ایسي چي په ارغند ناوه کښي به د خواجه ملک
شاهي وه. هغه کوتلونه چي د کندهار ښار لار
پر سپره وه، په پخوا کښي ډېر لوړ ول. خو په
وروسته کښي په وارو - وارو سره سورنګان
پکښي الوزول سول او لوړوالئ ئې ډېر ورکښته
کړئ دئ.

و مورچې کوتل ته د سلطان غیاث الدین
غوري له خوا څخه مارپېچه لار ورخېژول

سوې وه. دء د کندهار ښار بیرته په هسکو ودانیو سره ودان کړئ ؤ، چې بیا وروسته نادرقلي افشار کنډواله کړ.

دا چي کوټلونه لوړ ول او په اسانۍ سره ئې دفاع کېدای سوای، نو ډېر ښايي چي د شاه حسيني مات سوئ لښکر به د پیر پایمال له لاري څخه په منځنۍ ارغند ناوې ورننوتلئ ؤ.

زء ګومان نه کوم چي دغه د کندهار منځنۍ ارغند ناوه دي ئې په یوء کښ یا برید سره له خواجه ملک څخه نیولې وه. دغه اشغال به ئې ښايي میاشتي او کلونه وخت اخستئ ؤ. ښايي دوی به د هر کلي پر سر باندي سره جنګېدلي ول. خو شاه حسيني تر مرنجانه پوري رسېدلئ ؤ او خواجه ملک ئې و دې ته اړ ایستلئ ؤ، چي روغه ورسره وکي او په ورپاته سوو دوو کلو بساينه وکي. د دې له پاره چي د دوی روغه دائمي سوې وي او يوې خوا د بلي خوا پر سیمي باندي برید کړئ نه وي، تر منځ ئې سیدان ځایان کړي دي، چي دغه کلئ تر اوسه پوري لا هم د سیدانو کلی نومیږي چي موقعيت ئې د مرنجان او خواجه ملک تر منځ دئ.

د کندهارښار تر کنډواله کولو وروسته به الپ تګین او سبوک تګین دوی هم ځني تللي ول. دوی به غوښتل چي ځانونه ئې هیلمند ته رسولي وي. نو د نوري سیمي د نیولو له پاره باید و دوی ته ډېر تلفات رسېدلي نه وي. ځکه چي و شمالي افغانستان او تر آمو رادء و پوري خوا ته د نوري قوې د غونډولو له پاره تللای نه سوای.

په اغلب احتمال سره هغه شاه چي پر غزنوي تورکانو باندي ئې د کندهار ښار بایللئ ؤ، هغه به شاه حسيني نومېدئ. دی به په وروسته کښي ځکه حسيني باله سوئ وي څو د میرویس نیکه له زوی شاه حسین سره مغالطه یا اشتباه سوئ نه وي. نو ډېر ښايي چي د دء نوم به هم له لویه سره څه شاه حسین ؤ.

شاه حسيني د زمانې په جریان کښي اوز پلاوي د ارغند ناوې له شاه سره جنګېدلئ ؤ. د کندهار د منځنۍ ارغند ناوې شاه خواجه ملک Khwaja Malik نومېدئ. اوس دغه لوی کلی د دء په نامه سره خواجه Khwaja Malk نومیږي. ملک Malik هم د شاه مفهوم لري. دا چي که به خواجه ملک له عربي اصله او نسله څخه ؤ هم دي وسي. د دء اصلي نوم د چا په یاد نه دئ.

بالاخره به ښايي خواجه ملک و شاه حسيني ته نتواتي مرکه وراستولې وه چي دغه دوه وروستني کلي دي و دء ته ورپرېښوول سي. دا هغه مهال چي شاه حسيني تر مرنجانه پوري اوېجه ځني نیولې وه. د دوی تر منځ روغه په دې شرط سوې وه چي تر منځ به ئې سیدان ځایان کیږي چي اوس هم د خواجه ملک او مرنجان تر منځ د سیدانو کلی پروت دئ، چي له لویه سره څخه تر اوسه پوري لا په دغه نامه سره یادیږي، چي مراد او موخه ئې هم بېله دې څخه چي دوې دښمني او متخاصمي ډلي یا خواوي ئې ځله بېلي کړي وي بل څه کېدلای نه سي. زء به ئې یوه او دوې نوري ځرګندوني لا هم درکم.

هغه زمان چي په کاتیرګل کښي پخوانیان کافران اوسېدل، او د کونړ په کښتنۍ برخه کښي مسلمانان اوسېدل. دوی هري ټولني پر بلي بریدونه کول. مسلمانانو به هجوم پر وروور چي لښکر کښي به ئې پر وکړه. خو کافرانو کاتیرانو ئې په غلي برید سره جواب وایه. دوی به یو چړي ورواستاوه، هورې به یا په کلي کښي د شپې له خوا څخه ورننوتلئ ؤ یا به د کلي په نژدو کښي چیري ورته پټ ؤ. هري چیري چي به څوک یوازي په ناخبري سره پر پېښن سو، هغه به ئې لا آن په خنجر سره له ژونده ویوست. بیا به ئې نو سر څني پرې کړ او د خپلي بریا د ثبوت له پاره به ئې و کلي ته ورسره وېوړ. که به ئې د غلي برید ځای، لار یا کلئ لیري ؤ، نو به ئې د نزلې پوست څني پرې کړ او د خپلي مېړاني د ثبوت له پاره به ئې د نخښي په توګه ورسره وېوړ. دغو مرګونو دواړي خواوي و دې ته اړ ایستلي وې چي روغه سره وکي او تر منځ سیدان ځایان کي. هغه سیدان تر اوسه پوري هورې اوسېږي او کلئ ئې د پشت Pashat په نامه سره یادیږي. دغه کلئ تر چغه سرای (شیخان سرای) اوسني سیدآباد لوړ په کونړ دره کښي واقع دئ.

بله څرګندونه ئې داسي ده چي د پېښور او مردان په ختیځ کښي یوه دره د سوات Swat په نامه سره یادیږي. د دغي درې په پورتنۍ برخه کښي یا کالام کښي باشه Basha توکوم اوسیږي. په منځنۍ برخه کښي ئې توروال Torwal اوسیږي چي دره د دوی له اسیته سوات (سواد) بلله سوې ده، چي د توروالي مفهوم ښندي. دغه دوه توکومه هم همېشه څله په جنګ ول چي یو پر بل باندي ئې مرګن بریدونه کول. کله چي د دوی دواړو زور او توان نښېدلئ ؤ، او له جنګه څخه څله ستړي سوي ول، نو ئې تر منځ ګوجر ځایان کړي دي چي یو پر بل به بریدونه نه سره کوي. دوی، ګوجرو، هم د سیدانو غوندي دوې دښمني ټولني څله بېلي کړي وې.

زه د باباولي پر اصلي نامه باندي پېښن سوئ نه یم چي دی به څه نومېدئ؟ دا چي شاه حسیني پر لوړه غونډۍ باندي ښخ سوئ دئ، داسي ئې انګېرم چي دﻩ تر باباولي دمخه شاهي کړې وه. دی صرف شاه ؤ. خو باباولي ډېر وخت یا ډېر کلونه د قدرت خاوند ؤ. دی د زړوالي له اسیته څخه او هم دا چي د روحاني قدرت خاوند ؤ، نو ځکه په خپل خاص نامه سره یاد سوئ نه دئ. دا چي دی و شاه حسیني ته څرمه د غرﻩ پر ډډه باندي ښخ کړل سوئ دئ، د دوی دواړوندتیا سره ښووي.

د خواجه ملک د کورنۍ اوز غړي په یوه هدیره کښي چي څه کښته دېوال پر ګرځول سوئ دئ، د خواجه ملک کلي او یتیمک کلي تر منځ د غرﻩ په څنګ کښي له خواجه ملک له اړخه سره ښخ سوي دي. څوک به تر دﻩ دمخه او وروسته مړﻩ وي. دا چي د خواجه ملک Khwaja Malk کلئ د خواجه ملک Khwaja Malik په نامه سره یاد سوئ دئ، نو خود ویل کیږي: "چي کلئ په نامه لري ﻩ خوی تر نورو ښه لري". و بابا صاحب ته حرمه او ېجه هم د دﻩ په نامه سره پېژندله کیږي. مانا په بابا صاحب یا باباولي سره پېژندل کیږي.

**یادونه**: په تېره ګڼه کي د ډاکټر صاحب یوه مقاله (په منځني افغانستان کښي د خلزیو پښتنو تاریخي کرښپل) تر عنوان لاندي خپره سوه، لاندي موضوعات په هغې مقالې پوري اړه لري (اداره):

**د تاریخي حقیقت موندني ژبنۍ مطالعه**:

۱/ د میدان ښار او وردګستان د ژبځانګو مقایسه دي وسي.

۲/ د شیبر درې او افغانیې د ژبځانګو مقایسه دي وسي.

۳/ د شیبر درې او میدان ښار د ژبځانګو مقایسه دي وسي. د دوی د ژبځانګو مشابهت به ئې د ټولنو پر یووالي باندي دلالت کوي، که ئې د لغاتو او هم لهجوي اداؤ تشخیص او تمیز بارز ؤ نو ئې پر دوه ګونوالي باندي دلالت کوي چي ځله بېلي ټولني دي.

که د شیبر درې او میدان ښار د ژبځانګو تر منځ مشابهت ډېر ؤ، د مشترکو لغاتو سلنه ئې تر هغه ډېره وه چي اوسنۍ ګاونډۍ ژبځانګي ئې ورسره لري نو به د دوی پر یووالي او نژدېوالي باندي دلالت کوي. مانا به ئې دا وي چي دوی په پخوا کښي په دوو سره ځرمه اویجو کښي اوسېدلې لکه اخزرت، پنجاب او بهسودو دره چي د میدان ښار د خلګو دمخنۍ اوېجه به وه، او د شیبر درې خلګ په دمخه یا په پخوا کښي د یکاولنګ، څهاک درې اوسېدونکي ول. دوی پر دوو لارو ایستل سوي او ځله بېل سوي دي.

دغه ژبنۍ مقایسه په بېلابېلو کلونو کښي اوز زدامندان او زدامنداني کولای سي. په دغه راز مقایسه کښي زدامنداني ډېر اغېزمن یا واقعیت موندونئ کار کولای سي. ځکه چي ښځمني خپلي ژبنۍ اداوي، متلونه، ویناوي تر ډېره پوري د نورو له اغېز ځخه خوندي ساتلای سي. له ښځو ځخه دي قصې او دودونه وکښل سي.

**تر پوښتنلیک وروسته دي ورکښې ایستل سي**:

یوه بله ژبنۍ وسیله چي په هغې سره د دوو ټولنو د ژبنۍ لهجو یا ژبځانګو یوالئ یا ځله بېلوالئ پېژندلای او ښوولای سو، هغه د دوی د ژبي مرستندویه افعال دي، یا جملې بشپړوونکي افعال دي. دغه عبارت دي له "کېدنه" مصدري افعالو ځخه لکه: سم، سي، سو، سته او نورو مشتقاتو ځخه ئې.

آیا د میدان ښار اوسېدونکي او د وردګستان اوسېدونکي دواړي ټولني سم، سي، سو، سته وایي یا که به ئې په یوه ټولنه یا دواړو کښي شم، شي، شو، شته او نور مشتقات ئې دغسي ویل کیږي، که په یوه ټولنه کښي سم، سي، سو، سته ویل کیږي او په بله کښي به شم، شي، شو، شته ویل کیږي، نو دغه دوې ځله بېلي لهجوي ټولني دي.

دغسي هم دغه پېژندویه تصریفي کلمات د شیبر درې او افغانیې پر ټولنو باندي ازمویل کېدای سي ځو په پایلامه کښي ئې دا ښوول سوي وي چي دوی په یوه لهجه سره ږغیږي یا که په دوو ځله بېلو لهجو سره.

آیا ځېړندوی به د دې ځرک وایستلای سي چي په یوه یا بله ټولنه کښي دوې لهجې سره ګډې سوې دي. که دغسي شواهد پیدا کړای سي دا به ئې په اثبات رسولې وي چي د یوې لهجې ږغېدونکي د بلي لهجې و ټولني ته پناه وروړې ده او سره ګډې سوي دي. نو بیا به دا پوښتنه وي چي چا و چا ته پناه وروړې ده؟



لیکوال: استاد محمدمعصوم هوتک/کاناډا

# غريب المصنف

## نهه سوه شپاړس کلنه زړه خطي نسخه[1]

غریب المصنف د امام ابوعبید قاسم بن سلام هروي مشهور په (ابن سلام) تالیف دئ. د قاسم ابن سلام پلار د روم له مریانو څخه وو او د هرات د یوه اوسېدونکي غلام وو. ابن سلام د همدغه هراتي په کور کې د عباسي خلیفه ګانو په زمانه کې زېږېدلی وو. د زېږېدو پر کال ئې د مؤرخینو او تذکره لیکونکو اتفاق نسته. چائې د زېږېدو کال ۱۵۰هـ ق، چا ۱۵۲هـ ق او چا ۱۵۴هـ ق بللی دئ. دغو کلونو ته په پام کې نیولو سره ویلای سو چې د ابوعبید قاسم ابن سلام د زېږېدو زمانه د عباسیانو د دوهم خلیفه ابوجعفر عبدالله بن محمد بن علی بن عبدالله بن العباس المنصور (۱۳۶ – ۱۵۸هـ ق) د خلافت وروستي کلونه ول. قاسم ابن سلام چې په کوم کور کې زېږېدلی وو، د دغه کور څښتن فاضل او پوه سړی وو او د قاسم روزني ته ئې زیاته پاملرنه وکړه. قاسم ابن سلام د خپل ذاتي نبوغ له امله په لږ وخت کې مروج علوم ولوستل او د خپل وخت د متبحر امام، قاضي، مفسر، محدث، فقیه، ادیب، قاري او شاعر په توګه وپېژندل سو.

ابوعبید قاسم بن سلام هروي په ۲۲۴هـ ق کال په یوه روایت په مکه معظمه کې او په بل روایت په مدینه منوره کې وفات سوی دئ. د وفات پر وخت ئې د هارون الرشید (۱۷۰ – ۱۹۳هـ ق) زوی او د مامون الرشید (۱۹۸ – ۲۱۸هـ ق) ورور معتصم بالله (۲۱۸ – ۲۲۷هـ ق) د عباسي خلافت پر مسندناست وو[2].

د ابوعبید قاسم بن سلام هروي د شهرت زمانه د عباسیانو د اووم خلیفه مامون

الرشيد د خلافت دوره وه. په دغه وخت کي آل هرثمه په هرات کي د مامون الرشيد له خوا ځاکمني چلوله[۳]. له دغو امراوو په تېره بيا له رافع بن هرثمه سره د ابوعبيد راشه درشه زياته وه او هغوی ئې هم ډېر درناوی کاوه. په دغه وخت کي ابوعبيد بغداد ته د تگ اراده وکړه او د علم د زيات کسب په نيت دغه ښار ته ولاړ. په بغداد کي ئې له مهمو علمي مرکزو څخه علمي استفادې وکړې او له خورا درنې علمي زېرمي سره بيرته هرات ته را ستون سو. دغه وخت په هرات کي د طاهريانو د سلسلې د بنسټ ايښوونکي طاهر بن حسين مشهور په ذواليمينين د واکمنۍ وختونه ول[۴]. طاهر بن حسين چي پخپله هم علمدوست سړی وو، ابوعبيد ئې ډېر نازاوه. د طاهر بن حسين تر مرگ وروسته د هغه زوی عبدالله بن طاهر هم د ابوعبيد په باب د پلار پر لار روان وو او ابو عبيد ته ئې زيات درناوی کاوه. د عبدالله بن طاهر په وخت کي د ابوعبيد شهرت په ټوله اسلامي نړۍ کي خپور سوی وو. خليفه مامون الرشيد له ابوعبيد څخه وغوښتل چي بغداد ته ورسي او دی هم بغداد ته ورغی. هورې ئې خليفه مامون الرشيد ډېر درناوی وکړ او څه موده وروسته ئې د طرسوس ښار د قاضي په توگه وټاکه[۵]. ابوعبيد اتلس کاله د طرسوس ښار د قاضي په توگه پاته سو. وروسته له هغه دمشق ته ولاړ او له دمشق څخه مصر ته ستون سو او ورپسې ئې د حج نيت وکړ. د حج تر کولو وروسته په مکه مکرمه کي پاته سو او تر مرگه هورې واوسېد. وفات ئې د زياترو مؤرخينو په قول د ۲۲۴ هـ ق کال د محرم په مياشت کي پېښ سوی دئ. د وفات ځای ئې د ځينو مؤرخينو په قول مکه مکرمه او د ځينو په روايت مدينه منوره وه.

ابوعبيد قاسم ابن سلام په بغداد، کوفه، بصره، مصر، حجاز او نيشاپور کي د تدريس چارې پر مخ وهلي وې او د عباسي خليفه گانو زامنو ته ئې هم تعليم کړی وو. يو زيات شمېر علماء ئې پخپلو آثارو کي د نامه يادونه کوي. د مثال په توگه امام شمس الدين محمد بن احمدبن علي بن عثمان الذهبي (۷۴۸هـ ق وفات) په "سير اعلام النبلاء" کي د ابوعبيد شپږ‌نوي (۹۶) حوالې لري[٦]. ابوعبيد د خپل مثمر ژوندپه دوران کي خورا درانه آثار ليکلي ول.

امام ابي بکر احمد بن علي بن ثابت الخطيب البغدادي (۳۹۲ - ۴۶۳ هـ ق) په (تاريخ مدينة السلام) کي چي په (تاريخ بغدادي) سره هم مشهور دئ، د ابوعبيد قاسم بن سلام د تاليفاتو په باب داسي ليکلي دي:

ترجمه: "د ده د تصنيف سوو کتابو په باب ويل کېږي چي شل کتابه ئې په قرآن، فقه کي کښلي دي او دغه راز ئې غريب الحديث، غريب المصنف، الامثال او معانی الشعر او نور هم کښلي دي ... وايي کله چي به ئې کتاب تاليف کړ، و عبدالله بن طاهر ته به ئې هديه کړ او هغه به خورا دروند انعام د احسان په توگه ورکړ. د ده کتابونه په ټولو ښارو کي مطلوب او د خلکو خوښ دي. مشهور کسان ئې روايتونه رااخلي"[۷].

د ابوعبيد د تصنيفاتو په باب خطيب بغدادي ليکلي دي چي د ده يو کتاب "الامثال" دئ چي تر ده پخوا د بصرې او کوفې نور علماء، لکه الاصمعي، أبوزيد، أبوعبيده، نضر بن شُمَيل، مفضّل الضبي او أبن الاعرابي هم دې ته ورته تاليفونه لري. ابوعبيد د دوی ټول روايتونه راغونډ کړي او په بابونو کې سره

اوړلي دي. دا کتاب د ابوعبید په ښو تالیفاتو کي راځي.

بل کتاب ئې "غریب الحدیث" دئ چي پر دې موضوع هم تر ده پخوا أبوعبیده مَعمَر بن المثنی، قُطرب، اخفش او نضر بن شُمیل تالیفات کړي دي خو د هغو په تالیفاتو کي "اسانید" نسته. أبوعدنان النحوي البصري هم پر غریب الحدیث یو کتاب لري او په هغه کي ئې "اسانید"[۸] هم راوړي دي، خو دا کتاب غټ کتاب نه دئ. أبوعبید د دوی ټول مواد سره راغونډ کړي دي، اسانید ئې ورسره یو ځای کړي دي او د یو مسند په ډول ئې ترتیب کړي دي. له صحابه وو او تابعینو څخه ئې د ټولو کسانو احادیث راجمع کړي او له دې امله ئې کتاب دومره غني کړی دئ چي د حدیث، فقه او لغت پوهان هغه ته احتیاج لري.

د "معانی القرآن" په نامه ئې بل تالیف سته. په دې برخه کي د لغت له پوهانو څخه لومړی سړی أبوعبیده مَعمَر بن المثنی دئ چي په دې برخه کي ئې کتاب لیکلی دئ. وروسته قُطرب بن المستنیر دئ، بیا اخفش دئ. دغه راز له کوفیانو څخه الکسائي او وروسته الفراء هم په دې باب تالیفات لري. أبوعبید د دغو کتابو ټول مواد سره راغونډ کړل. اسانید ئې ورته برابر کړل او د صحابه وو او تابعینو او فقهاوو په آثارو ئې مستند کړل. نیم کتاب ئې وکیښ او دمخه تر دې چي دا نوره نیمایي برخه ئې پوره کاندي، د اجل قاصد ورته راغی او ده جامې کت کړې.

خطیب بغدادي زیاتوي چي په فقه کي د ده تالیفات زیاتره د مالکي او شافعي مذهب پر بنسټ لیکل سوي دي او د هغوی تقلید ئې کړی دئ خو د هغوی له خوا راوړل سوي احادیث او روایتونه ئې پر نحوي او لغوي دلایلو برابر کړي دي.

خطیب بغدادي لیکي چي په قرائت کي د ده یو تالیف سته چي مثال ئې په کوفیانو کي تر ده پخوا نسته. دغه راز ئې په فقه کي یو ډېر ښه او ګټور کتاب کښلی دئ چي "الاموال" نومېږي.

د "غریب المصنف" یادونه خطیب بغدادي د تالیفاتو په سر کي راوړې ده او لیکلي ئې دي:

"فمن ذلک "غریب المصنف" و هو من اجلّ کتبه في اللّغة، فانه احتذی فیه کتاب النّضر بن شُمَیل المازني الذي یسمیه کتاب "الصفات" وبدأ فیه بخلق الانسان، ثم بخلق الفرس، ثم بالابل، فذکرَ صنفاً بعد صنفٍ حتی أتی علی جمیعِ ذلک، وهو أکبرُ من کتابِ أبي عُبید وأجودُ"[۹].

ترجمه: یو ئې غریب المصنف دئ چي په لغت کي د ده مهم تالیف دئ او په هغه کي ئې د "الصفات" په نامه د نَضر بن شُمَیل المازني د کتاب لار غوره کړې ده. شروع ئې د انسان له طبیعت او عادتو څخه کړې ده، بیا ئې د آس طبیعت او عادات او وروسته د اوښ دا او په دې ډول ئې دا نور ټول جنس پر جنس راوړي دي. د نضر بن شُمَیل کتاب د ابو عبید تر کتاب هم غټ دئ او هم ګټور[۱۰].

اروانښاد عبدالرؤف بېنوا پخپل ګټور تالیف (د افغانستان نومیالي) کي د أبوعبید بیان د (ابن سلام هروي) تر نامه لاندي راوړی دئ او د ده د آثارو شمېر ئې د ابن ندیم په قول یو اویا (۷۱) بللی او د مشهورو نومونه ئې داسي ښوولي دي:

- **کتاب الاجناس** من کلام العرب
- غریب المصنف

- فضائل القرآن وآدابه
- كتاب الايضاح
- خلق الانسان ولغوتهُ
- كتاب الاضدادوالضدفى اللغة
- كتاب النعيم والبهايم والوحشي والسباع
- كتاب الخطب والمواعظ
- كتاب فعل و افعل
- كتاب الاموال

اروابښاد بېنوا زياتوي چي "د الاعلام مؤلف زركلي برسېره پر دغو آثارو دا كتابونه هم د ده له خطي نسخو څخه ګڼي:

- الظهور (په حديثو كي)
- ادب القاضي
- المذكروالمؤنث
- المقصودوالممدود (په قرأت كي)
- الاحداث
- النسب[11]

اروابښاد بېنوا د (غريب المصنف) خطي نسخې "په اياصوفيا، قاهره اسكوريا او د استانبول د فاتح او د امادزاده په كتابخانو كي" راښيي.

د حاجي عبدالمجيد هوتک په كتابتون كي د غريب المصنف يوه ډېره زړه نسخه خوندي وه. د غريب المصنف دغه خطي نسخه پخوا د كندهار د زړې جامع د امام عبدالاحد اخندزاده "غريبک" په كتابخانې اړه درلوده او كله چي د غريبک مرحوم تر وفات وروسته دغه كتابخانه د دغه مرحوم د ورثې له خوا تر ۱۳۲۹ ش كال وروسته[12] ليلام سوه، حاجي عبدالمجيد هوتک په دغه ليلام كي په بيه رانيولې وه[13]. او ما ته حاجي عبدالمجيد هوتک د ۱۳۵۵ش كال په حدودو كي د دوی په كور كي راښكاره كړې او ما سرسري كتلې وه. زما په كاغذو كي د دغي نسخې يادابښتونه او د سر و پای د ځينو مخونو فوټوكاپي سته چي غواړم له لوستونكو سره ئې شريک كاندم.

دغي نسخې كلكه د څرمني وقايه درلوده. خط ئې ښكلی، د خطاط نوم ئې "هبة الله بن محمد بن ابراهيم كوهيارالفارسی" او د استنساخ كال ئې "ثلاث وتسعين اربع مائه = ۴۹۳ هـق "ليكلی وو. دغه كال له ۱۰۹۹ع كال سره برابر دئ. د نسخې پر هر دوهم مخ ئې وروسته بل چا د صفحې نمبر اېښی وو چي له يوه څخه شروع تر (۲۹۴) پوري رسېدلی دئ. په دې حساب د كتاب ټول مخونه (۵۸۸) كېږي.

د كتاب د وقايې پر اول مخ د كتاب له كاتب پرته بل چا وروسته داسي كښلي دي:

كتاب تهذيب الغريب المصنف

لابی عُبَيد رحمه الله تعالی

د دغه دوو كرښو كيڼ لور ته بيا په ايرب خط ليكلي دي:

"هذا كتاب تهذيب الغريب المصنف فی اللغه فهذا كتاب جليل الشان عظيم البرهان لايری مثله احد من ابناء الزمان". قيمت پنجاه روبيه.

د كتاب تر نامه لاندي ئې كښلي دي:

"اظن ان هذا الكتاب

بسم الله الرحمن الرحيم ياحافظ الدين و يامن نِعَمه لاتحصی انت قلتَ وقولک الحق انانحن نزلنا الذكر و انا له لحافظون

امام ثامن ضامن معروف الكرخي

يا كبيكج يا كبيكج يا كبيكج قطمير قطمير قطمير[14]".

د كتاب د وقايې (پشتی) پر دوهم مخ ئې يو چا داسي كښلي دي:

"القاسم بن سلام ابوعبيدكان ابوه روميا مملوكاً لرجل من اهل هراة وكان ابوعبيد امام اهل عصره فی کل فنٍّ من العلم و ولي قضآء طرسوس ايام ثابت بن نصر بن مالک ولم یزل معه ومع وَلدَه ومات سنة ثلاث او اربع و عشرين و مائتين فی ایام المعنصم بمکة وکان قصدها مجاوراً فی سنة اربع عشرة و مائتين و اقام بها حتی مات عن سبع وستين سنه وله مصنفات عديده من جملتها هذا الکتاب المسمی بالغریب المصنف و کتاب غريب الحديث و کتاب غريب القرأن و غيرها رحمة الله تعالی . من معجم الادباء الياقوت الحموی.

قال عبدالله بن طاهر علمآ ء الاسلام اربعة عبدالله بن عباس فی زمانه والشعبی فی زمانه والقسم بن معن فی زمانه و ابوعبیدالقسم بن سلام فی زمانه ثم قال یرثیه:

ياطالب العلم قدمات ابن سلام
وکان فارس علـمٍ غيرمحجام
کان الـذی کان فیکم رُبع اربعة
لـــم يَلقَ مثلهم اسناداحکام"

ترجمه:

د القاسم بن سلام ابوعبید پلار د روم وو او د هرات د یوه اوسېدونکي رومي مریی وو. ابوعبید د علم په هر فن کي د خپلي زماني په خلکو کي امام وو. د ثابت بن نصر بن مالک او د هغه د زوی په وخت کي د طرسوس قاضي وو. په سنه ۲۲۳ یا ۲۲۴ کي د المعتصم په وخت کي په مکه کي مړ سو. دغه ځای ته ئې د استوګني نیت په ۲۱۴ هـ کي کړی وو او هورې د مرګ تر ساعته واوسېد. د مرګ پر وخت اووه شپېته کلن وو. ده یو زیات شمېر تصنیفونه لري چي په هغو کي همدغه کتاب چي غریب المصنف نومېږي او بل کتاب غریب الحدیث او بل ئې غریب القرأن او نور دي. خدای تعالی دي پر ورحمېږي. (د یاقوت الحموي له معجم ادباء څخه). عبدالله بن طاهر ویلي دي چي د اسلام علماء څلور تنه دي. عبدالله بن عباس پخپله زمانه کي، الشعبي پخپله زمانه کي. القسم بن معن پخپله زمانه کي او ،بو عبیدالقاسم بن سلام پخپله زمانه کي[۱۵].

وروسته ئې په وير کي ويلي دي:

اې طالب العلمه په تحقیق سره چي ابن سلام مړ سو
دی بې له ډاره د پوهي د ډګر آس څغلوونکی (اتل) وو
هغه څوک مړ سو چي زموږ په منځ کي یو له هغو څلور تنو څخه وو
د ده په شان له سند او دلیل سره بل څوک نه دئ لیدل سوی[۱۶].

د کتاب لومړی مخ په یوه نیمګړې جمله پیل سوی دئ او داسي ښکاري چي د سر پاڼه یا پاڼي دي ئې لوېدلي وي. موجود پیل داسي دئ:

"مَعَ الفَمِ مع صبيیّ اللَّحيين الا تری اَنهّم اذاقالوحطَمتُ الجمل انّهم قد ادارو رّسنهُ علی انفه وصبِيّی من تحت والخَبلُ نفسهُ سُمّی الخطام وقالوابوسلامه اللخيه خطام الرجل وحکی عن رَجُلٍ منهم انّ امرأتهُ هزئت به فی ... وقالت له نعم ماصنعتَ فقال لها فلِمَ حُطمتُ بهااذاً يُعنی الخيتهُ ."

د کتاب آخر باب داسي دئ:

"باب
خَفّ الطائرُ يَخفُّ خفيفاً فی صوت طيرانه وخفّ رأس الانسان وغيره يخفّ خفوفاً اذا شعث وخف القوم بالشی يخفون حولَه خفاً وخَفّت المرأة وجهها تخفه خفاً وخفَافاً".

کتاب داسي پای ته رسېدلی دئ:

"وعن الفَرّک رَجُلٌ جُعظریٌ والکلام جَعظریٌ وعن الکسائي کِعتُ عن الشی اکاع

وكععتُ اكعّ كلاهُماسّوَاءُ واستلَمتُ الحجر وبعضهم بهمزُ وسمع الا بلغٌ مثَلٌ يقالُ عندالشئ نسمَعُهُ ولايعجبکُ اتيتهُ مَلَث الظلام ومَلَس الظلام الا يتياک السياسة والااله الحالة وتشاءِي القوم تفرّقو قال ذوالرّمّة ابوک تلافی الناس والدين بعدماتشاءَ و وَبيتُ الدين منقلِع الكسر ... بلالَ ترابى بردَة بن ابي موسَى الاشعرىّ يقول انّ اباکَ انا موسى تلافى امرالناس عندالتحكيم بماصَنَع معَ عمرو بن العاصى بعدمااشرف الناس على الهلاک فی بينهم والكسرٌ جانب البيت وهذاعلى طريق التشبيه وتَقرّب اليه ذوالرّمة بها قال وقدعَلِمَ الناسُ مانتَج ذلک الفعلُ بينهم".

د کتاب وروستۍ جمله او د کاتب نوم:

"هذا اخر تهذيب الغريب المصنف والحمدلله رب العالمين و صلى الله على محمدالرسول و كتب هبة الله بن محمدبن ابراهيم كوهيارالفارسی سنه ثلاث وتسعين واربع مائه".

تر دغه عبارت لاندي يو بل چا چي دا کتاب ئې په درس لوستی وو، داسي کښلي دي:

"قرء هذالكتاب من اولهُ الى [الاخر] على الامام العالم العلام ابى زکريا رحمه الله تعالى".

گويا همدغه نسخه يو چا له سره څخه تر پايه پوري پر " امام العالم العلام ابي زکريا" باندي په درس لوستلې ده.

د دغه وروستي مخ د پای له خوا په ښي کونج کي يو څلور کونجه مهر لگېدلی دئ چي د کتاب په يوه بل مخ کي هم سته او هورې داسي لوستل کېږي: (کتابخانه مبارکه دولت خداداد افغانستان ۱۳۱۰). دا وخت د افغانستان پاچا اميرعبدالرحمن خان وو او دا مهر هم د ده د کتابخانې مهر دئ. دا نسخه اوس د حاجي عبدالمجيد هوتک له ورثې سره خوندي ده.

محمدمعصوم هوتک

آشاوا–انټاريو – کاناډا

۶/فبروري/۲۰۱۵ع

**لمنليکونه:**

۱. څه موده پخوا مي په هرات آنلاين کي د امام ابوعبيد قاسم بن سلام هروي په باب د الحاج عبدالكريم غريق يوه په زړه پوري تحقيقي مقاله ولوستله. څرنگه چي په کندهار کي د زما د اکا او استاد مرحوم حاجي عبدالمجيد هوتک په کتابتون کي د غريب المصنف يوه زړه خطي نسخه خوندي وه او ما ئې د کتني فرصت موندلی وو، نو مي څکه دا ليکنه سرښته کړه. هيله ده چي د محققينو په درد وخوري. په دې ليکنه کي د الحاج عبدالكريم غريق له مقالې څخه ځای ځای مشروع استفاده سوې ده. هوتک

۲. معتصم بالله د عباسيانو اتم خليفه وو.

۳. هرثمه بن اعين د هارون الرشيد له ډېرواعتمادي سردارانوڅخه وو او په ۱۷۸هـ ق کال د هارون له خوا د مصر ولايت ته استول سوی وو. د هرثمه تر مړيني وروسته ئې اولاده هم د عباسي خلافت په دربار کي معتبره وه. د ده اولاده د آل هرثمه په نامه يادېدله. (هوتک)

۴. طاهر بن حسين په لومړي سر کي د عباسي خليفه مامون الرشيد له

سردارانو څخه وو او د خراسان د امیر په توګه مقرر سوی وو. وروسته ئې له عباسي دولته سرکښي وکړه او په ۲۰۷ هـ ق کي ئې خپلواک حکومت ئې اعلان کړ.

۵. طرسوس په اوسني ترکیه کي د مدیترانې پر غاړه یو ښار دئ چي په هغه وخت کي د شام یوه برخه وه.

۶. وګ : سیراعلام النبلاء ـ چاپ ۱۴۱۷هـ ق ـ بیروت.

۷. وګ: تاریخ مدینة السلام ـ جلد ۱۴ ـ ص ۳۹۳ ، چاپ دارالغرب الاسلامي، بیروت ـ ۱۴۲۲هـ/ ۲۰۰۱م

۸. اسانید د "اسناد" جمع ده او اسناد په احادیثو کي مروجه اصطلاح ده. د اسناد له مخي د یوه حدیث "صحة النقل"، ضعف، او ادا پېژندل کېږي. دهخدا.

۹. وګ: تاریخ مدینة السلام ـ جلد ۱۴ ـ ص ۳۹۴، چاپ دارالغرب الاسلامي، بیروت ـ ۱۴۲۲هـ/ ۲۰۰۱م.

۱۰. وګ: هماغه اثر، ۳۹۳ ـ ۳۹۴ مخونه.

۱۱. وګ: بېنوا ـ عبدالرؤف ـ د افغانستان نومیالي ـ لومړی ټوک ـ له ۱۰۶ څخه تر ۱۰۹ مخونه، کابل ـ ۱۳۵۶ ش.

۱۲. په دغه کال عبدالاحداخندزاده غریبک وفات سوی دئ. م . هوتک.

۱۳. دا خبره ما (محمدمعصوم هوتک) ته پخپله حاجي عبدالمجید مرحوم کړې وه. د غریبک د کتابتون په باب د علامه رشاد له خولې روایت دئ، وایي غریبک چي "وفات سو، د ده په پاته سوو خلکو کي داسي څوک نه وه چي د ده کتابخانه وپالي. دا کتابخانه (سعدالله) نومېدی، هغه رانیوله او په خورا ناچیز قیمت ئې دغه آثار، چي خورا مهم آثار وه، خرڅ کړل..." (وګ: آیا غریبک پېژنئ؟ ـ د سریزي (ح) مخ ـ ۱۳۸۳ ش، کندهار.

۱۴. د عبارت د وروستیو کلماتو مفهوم و معنی نه رامعلومېږي خو اوړ بدلي مي دي چي پخوا به پر خطونواو مراسلاتو باندي تر سرنامې لاندي لیکل کېدل چي "بحواله قطمیرات". د لیک استونکي په دې عقیده ول چي دغه عبارت یو طلسم دئ چي د لیک له ساتني او تاکلي ادرس ته له سالمي رسېدني سره مرسته کوي. قطمیر د اصحاف کهف د سپي نوم وو. (هوتک).

۱۵. د عبدالله بن طاهر د غه خبره خطیب بغدادي په تاریخ مدینة السلام (۴۰۲مخ) راوړې ده. م. هـ.

۱۶. خطیب بغدادي په تاریخ مدینة السلام (۳۰۲مخ) کي د دغي ویرني بشپړ شکل داسي راوړی دئ:

یاطالب العلم قد أودَی ابن سلام
قدکان فــارسَ علم غیرَ محجام

أودَی کــــان فینا رُبعَ أربعة
لم یُلفَ مِثلَــهم اسناد أحـکام

حـبرالبریّة عبدالله عـــالمُها
وعـــامِـر ولَنِعمَ التلو یاعام

هــما أنافا بعلم في زمــانهما
والقاسمان : ابنُ مَعن وابن سلام



ليکوال : ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# زړه ور سياسي ملنګ

بسم الله الرحمن الرحيم. درنو لوستونکو، مور ټول پوهېږو چې ملنګ تل يو روحاني شخص وي، دنيا ناخوښه وي، ګوښه نشين وي، قانع او صابر وي، آن دا چې مجذوب او فقير وي. خو زه چې کوم ملنګ درپېژنم ، هغه د دې ټولو ځانګړتياوو تر څنګ يو مضبوط سياسي فطرت هم درلود. د دې ملنګ سياسي تومنه دومره ټينګه او جاروتې وه چې پورتني ټول خصايص ئې تحت الشعاع راوستلي ول. هو، دا زړه ور انسان صابر شاه ملنګ وو چې په خپل سياسي اقدام او نوښت سره ئې تاريخ ته يو نوی لوری ورکړ. نو ځکه ئې يادونه او يادلرنه ضروري ده.

نن، يعنی د جنوری د مياشتی لومړنی هفته د صابر شاه ملنګ د شهادت ۲۶۶مه کاليزه ده او ځکه نو په همدې مناسبت دغه څېړنه وړاندي کوم.

خو تر هر څه مخکی مو دغه خوږې خاطرې ته پام را اړوم: څه نا څه پنځه دېرش کاله مخکي زموږ د تاريخ استاد په صنف کي له يو شاګرد څخه وپوښتل چې صابرشاه ملنګ څوک وو؟ هغه ورته وويل چې په لويه جرګه کي ئې احمد شاه بابا پاچا کړ او د غنمو وږی ئې د هغه په لنګوټه کي نصب کړ. معلم صاحب ورڅخه وپوښتل چې په دې خو هر څوک خبر دي، د دې لويي جرګې څخه مخکي هغه څه

کاره وو او وروسته څه کاره وو او بیا څه سو؟ شاګرد ورته وویل چې صاحبه، نور خبر نه یم. تاسي ئې لطفاً راته ووایاست. معلم صاحب ځان تېر کړ او د تاریخ په آینده ساعت کي ئې د ځواب قول ورکړ. خو هغه ځواب تر پایه و نه ویل سو. نو ځکه زه کونښښ کوم چي د خپل معلم صاحب پر ځای د هماغه ټولګیوال ځواب ولېږوم، خیر دئ چي ډېر ناوخته او بې ربطه سوی دئ. مګر دا چي نن د هغه زړه ور شخصیت د مړیني ۲۶۶مه کالیزه ده نو یو څه ارتباط مومي.

ښه، صابرشاه یو مجذوب لاکن دراک او سیاسي ملنګ وو چي څه موده په کندهار کي اوسېدلی دئ. د افغانستان معاصر تاریخ د مرحوم صابرشاه سره تلپاته او نه شلېدونکی پیوند لري. داسي هم ویلای سو چي صابرشاه د افغانستان د پخواني او معاصر تاریخ په ترلو کي یو کلیدي رول ادا کړی دئ. دا رول ئې کورټ رغنده وو، یعني زور ئې په رضا او نفرت ئې په محبت سره بدل کړ. په بل عبارت، هغه د افغان معاصر تاریخ په راپیلولو کي مهم، غوځ او ثابت کردار ادا کړی دئ.

د تاریخ ځینی کتابونه وایي چي صابرشاه (رح) په کندهار کي د شیر سرخ زیارت متولي وو، خو ځیني بیا وایي چي دی د احمد شاه بابا سره له ایرانه کندهار ته راغلی وو. اکثره تاریخي آثار وایي چي صابر شاه د لاهور اوسېدونکی وو، خو لږ آثار ئې کابلی بولي. مګر دا تر ننه معلومه نه ده چي هغه سُني وو که شیعه، آیا هغه افغان وو که پنجابی او که ایرانی وو، آیا ملنګ وو که متولي (او که دواړه)؟ چیري زوکېدلی او چیري لوی سوی وو.... د هغه د اصلیت او هویت په هکله تر اوسه بشپړ، کره او ثابت معلومات نسته. دا هغه مجهولات دي چي تر ډېره حده به ئې په همدې لیکنه کي وڅېړو او په هکله به ئې د بېلابېلو تاریخپوهانو او مختلفو آثارو دریځونه ولټوو. خو هر څه چي وو، اساسي خبره دا ده چي هغه پر ټولو افغان ملي او قومي مشرانو خصوصاً احمد شاه بابا باندي ډېر ګران وو او پر ټولو ئې خورا اثر او نفوذ درلود. هر چا ئې ډېر قدر او عزت کاوه او هر چا ئې خبره بالکل منله. هغه له جوش او احساساتو ډک وو. په جرأت ئې سپیني خبري کولې او د هیچا پروا ئې نه ساتله او نه ئې پایله سنجوله. د زړه خبره ئې په خوله وه او تل به د جذباتو پر نیلي سپور وو.

په هر صورت، کولای سو چي د بېلابېلو تاریخي آثارو په حواله د صابر شاه ملنګ ژوند تر څه حده واضح او توضیح کړو. خصوصاً د اړونده لویي جرګې څخه مخکي او وروسته به د هغه د ژوند پر حالاتو ډېر تمرکز وکړو.

خو باید ووایم تر کومه ځایه چي ما (یعني دغه لیکوال) د صابر شاه په هکله مختلف آثار او مقالې لوستلي دي یا مي مخامخ د ځینو کسانو سره خبري کړي دي، له مخي ئې دا ملنګ په درو څېرو او دریځونو کي رامعرفي سوی دئ: ډېرو څېړونکو هغه یو مجذوب سید، منلی درویش، یو فقیر انسان او د لاهور اوسېدونکی بللی دئ. لږو څېړونکو بیا نه سید بللی دئ او نه د لاهور اوسېدونکی، بلکي درانی او د کندهار ذاتي اوسېدونکی ئې بللی دئ. خو یوې خاصي ډلي بیا په بد نوم

سره يو مجهول الهويه، مشكوک او مرموز انسان بللی دئ. نو زه به کوښښ وکړم چې د نوموړي ملنگ په اړه دا درې واړه ادراکونه او برداشتونه بالترتيب ذکر کړم او قضاوت درنو لوستونکو ته پرېږدم، خو زه شخصاً د اول نظر پلوی يم.

ښه، د علامه رشاد بابا له قوله داسي ويل کېږي چې هغه يو لېونی غوندي وو او په خټه سيد وو، چې په لاهور کي زوکړی او غالباً هلته لوی سوی وو. د ۱۱۵۱ هجري قمري کال په وروستيو کي چې نادر افشار پر هندوستان يرغل وکړ، نو صابر ملنگ د هغه د پوځونو سره مل سو. هر ځای چې به نادري لښکرو واړول، ده به هم ځانته يوه ځپری جوړه کړه او په هغه کي به اوسېدی (احمد شاهي شاهنامه؛ تعليقات: ۵۳۵ مخ). هو، د پوځيانو، هغه هم پرديو پوځيانو سره د يو ملنگ او درويش يو ځای کېدل، د هغوی سره له خپل وطنه تلل او په بل هيواد کي ورسره اوسېدل پخپله د هغه سياسي احساس او کړنه راښيي.

قيصر علي آغا د «نقوش لاهور» د ۹۲ مخ په حواله کاږي چې: صابرشاه نيم مجذوب درويش وو، لاهور د هغه پلرنی ټاټوبی وو. د ده نيکه چې نوم يا غالباً لقب ئې «استاد حلال خور» وو، په کابل کي د آسونو د ناروغيو ډاکتر وو. هغه وروسته له دنيايي چارو سره اړيکی غوځ کړ او درويشي ئې غوره کړه. د هغه د زهد او تقوی له کبله خلکو په درنه سترگه ورته کتل. د هغه د لمسي يعني صابر شاه پلار حسين شاه هم يو فقير وو. صابر شاه په همدې چاپېريال کي روزنه موندده. پر هغه بې خودي غالبه وه. د نادر شاه افشار په ژوند کي هغه له احمد شاه سره د امام رضا (رح) د زوی سلطان ابوالحسن علي په مزار کي چې په مشهد کي پروت دئ وليدل (غازی احمد شاه ابدالي: ۲۴ مخ).

دلته څو ټکي مهم دي چې د ده پر ژوند رڼا اچوي: لومړی دا چې صابر شاه د پلار - نيکه څخه د لاهور اوسېدونکی (يعني پنجابی) دئ؛ دوهم دا چې نيکه ئې کابل ته تللی او هلته په کار بوخت وو (يعني ناقلين دي)؛ دربيم دا چې هغه ډېر په ايران کي اوسېدلی دئ او هلته د احمد خان سره معرفي سوی دئ او دا هغه مهال وو چې احمد خان په ايران کي د نادرشاه په پوځ کي د افغاني ځواکونو قوماندان وو؛ څلرم دا چې يو فقير او ملنگ شخص وو چې په زيارتونو کي به ډېر اوسېدی، مگر دا ترې ثابتېږي چې په عين حال کي يو سياسي شخص هم وو. ځکه نو رامعلومېږي چې صابرشاه د پخوا څخه لا د احمد شاه بابا سره معرفت او دوستي لرله. ښايي د دې پېژندگلوی پيل په لاهور کي د نادر افشار د پوځيانو سره د هغه ملگرتيا او يو ځای والی وي. څنگه چې احمدخان د نادر افشار د نږدې او باوري قوماندانانو څخه وو او هم د صوفيانو، درويشانو او روحانيونو شايق وو، نو ښايي د ده سره ئې پېژندگلوي او دوستي له همدې لاهوره راپيل سوې وي. ځکه، که صابرشاه له يوې خوا درويش، ملنگ او فقير وو، له بلې خوا يو سياسي شخص هم وو، د پوځيانو او سياست والو سره ئې جوړه وه.

داسي ښکاري چې صابرشاه به د

شیرسرخ د زیارت مجاور (متولي) نه وو، بلکي ډېره استوګنه ئې په ایران کي وه. اوځار هندی تاریخپوه ډاکټر ګنډا سینګهه د (مجمل التواریخ په حواله) وایي چي: ملنګ صابر شاه د نادر افشار تر وژلو درې ورځې مخکی د نظام الملک په څېر د احمد خان د پاچا کېدو اټکل کړی وو. په هغه ورځ چي نادر شاه د وروستي ځل له پاره له خبوشان څخه راوګرځېد او خپل کمپ (خېمې) ئې ودرولې، نو دا وخت یو ملنګ، چي وړینه خولی ئې پر سر وه د احمد خان سره وکتل او د نادر شاه قدرت ته د پام کولو او وېرې پرته ئې ده ته وویل: «زه ستا په څېره کي د پاچهۍ نخښې وینم. ما ته یو نخي ټوکر راکړه، کله چي مي څو خېمې او یو لوی شاهانه تجیر ترې جوړ کړ، نو هغه وخت به زه تا ته دعا وکړم». څرنګه چي احمد خان خوش باوره وو، نو د پیر غوښتني ئې ومنلې او ورپسې نوموړی پیر داسي برېښېده چي د ماشومانو په څېر د وړو خېمو په درولو اخته دئ او د قرآن پاک آیتونه تلاوتوي. کله چي دریمه ورځ راغله نادر ووژل سو. احمد خان ملنګ ته د یو مبارک ولي په حیث، چي راتلونکي اسرار ئې اټکلولای سوای قایل سو او دې ته ئې پام واړاوه چي د خپل راستنېدو په وخت کي هغه شا ته پرې نه ږدي او ترې جلا نه سي. ملنګ هم احمد خان دې ته راوباله چي خپل ځان پاچا اعلان کړي، خو احمد خان د ستري قبیلوي جرګې تر پرېکړي پوري په دې باب زړه نا زړه او شکمن وو (درانی احمد شاه: ۶۹مخ).

متل دئ چي حقیقت یا زورور وایي، یا لیوني! خو صابر شاه نه زورور وو، نه لېوني چي د نادر شاه په ژوندوني ئې احمد خان ته د نادر افشار د ځای نیوونکي بشارت ورکاوه، بلکي هغه یو زړه ور سیاسي او دراک ملنګ و. دا ځکه چي نادر د ژوند په وروستیو دوو – درو کالو کي دومره وحشي، ظالم او داړونکی سوی وو، چي د قدرت په وړاندي ئې هر څوک او هر تهدید تباه کاوه. آن پر خپل زوی (رضا قلی) باندي هم بدګومانه سو او سترګي ئې ترې وکښلې او ړوند ئې کړ؛ نو بل څوک (منجمله یو افغان) به ئې څنګه سالم پرېښووئ؟! دا لا څه، صابر شاه ته به ئې څنګه د دغسي پېشبینۍ موقع ورکوله (هغه هم دننه په خپل نظامي کمپ کي)؟ یا دا چي په دغسي حالت کي ئې احمدخان څنګه له ځانه اقلاً نه لیري کاوه.

په هر صورت، سراج التواریخ بیا (د تاریخ احمدي په حواله) وایي چي دا صابر شاه نه بلکي په خپله نادر افشار وو چي احمد خان ته ئې ویلي ول چي ښایي تر ما وروسته پاچهي تا ته ورسېږي، یعني: نادر شاه «له ده څخه ډېر راضي او خوشحاله وو. لکه څنګه چي په اکثرو مجلسونو کي به ئې خپلو درباریانو او دولتي اراکینو ته په عامه ویل چي په ایران، توران او هندوستان کي مي د احمد خان غوندي د ښو ځانګړتیاوو او نېکو اعمالو کوم ځوان نه دئ لیدلی.... یوه ورځ اعلیحضرت نادر شاه دی ځانته وباله او ورته وې ویل چي له څېرې څخه دې مشرتیا له ورایه ښکاري او تر ما وروسته به پر همدې تخت باندي کښېنې. همدا ئې ورته وویل او د ده غوږ ئې د

خپلي دغي خبري د يادګار په توګه په خپل لاس وموښی او بيا ئې داسي ورته وويل: تر ما وروسته زما حق مراعات کوه يعني زما د اولادو سره ښه چلند کوه او بالاخره څنګه چي اعليحضرت نادر شاه ورته ويلي ول، هغسي هم وسوه (سراج التواريخ، لومړی جلد، نهم مخ).

ويل کېږي چي نادري پوځونو چي به هر ځای پړاو کاوه يعني کمپ به ئې جوړاوه، نو صابرشاه به د کوچنيانو غوندي د څپرۍ مخي ته له خاورو څخه کوټنۍ جوړولې او ډېر ډوکي او خاشې به ئې پکښې درولې. چا چي به وپوښتېد: دا څه کوې؟! ده به ځواب ورکړ: «د احمدشاه د پاچهۍ ترتيبات نيسم. دا ئې رساله ده، هغه ئې توپخانه ده او هوغه ئې لښکري دي او...». (احمدشاهي شاهنامه؛ تعليقات: ۵۳۵مخ).

هر څه چي وو، يا د صابرشاه پېش بيني او يا هم په خپله د پاچا نادرشاه پېش ګويي، خو احمدخان په ځان کي همدا لياقت، استقامت او قابليت درلود چي پاچا سو.

د دې هر څه سره سره، دی بيا هم شکمن وبرېښېدی او د خپلي ناتوانۍ معذرت ئې وړاندي کړ. د ډاکټر ګنداسينګهـ له قوله ښايي دا عجز به ده په ځان کي د پاچهۍ د برم له پاره د ضروري وړتياوو او شرايطو د نه ليدو پر اساس وړاندي کړی وي. خو صابرشاه ملنګ داسي يو سړی نه وو چي په آسانۍ سره له خپلي خبري واوړي. دا وخت ده وليدل چي افغاني مشرانو او قبايلي خلکو د احمد له انتخاب او پاچا کېدو سره علاقه وښودله، نو له دې حساسي شېبې څخه ئې استفاده وکړه او په همدې ځای کي ئې د خاورو يوه چوتره جوړه کړه، احمد ئې تر لاس ونيوی، پر دغه لوړ ځای ئې کښېناوه او بيا ئې داسي وويل: «دا ستا د پاچهۍ تخت دئ». بيا ئې له نږدې پټي څخه د اوربشو وړي وشکول او د ده په لونګۍ کي ئې وټومبل او زياته ئې کړه: «ان شاء الله دا به خدای ستا د تاج جوغه کړي». په پای کي ملنګ د دې له پاره چي مراسم بشپړ کړي، نو ئې اعلان وکړ: «اوس نو ته دُر دوران پاچا يې». خو احمد خان دا نوم اصلاح کړ، او دا ئې غوره کړه چي خپل ځان در دران (د مرغلرو يوه مرغلره) او خپله ابدالي قبيله دراني وبولي. خو شېرمحمدخان په خپل اثر (انصاب رؤسای ديره اسماعيل خان) ۳۱ بند کي داسي ليکي: «هغه پير چي احمد خان ته ئې د دُر دوران لقب ورکړی وو د څمکنيو حضرت ميا عمر وو». (دراني احمد شاه: ۷۰ ـ ۷۱ مخونه).

او ځار تاريخپوه قاضي عطاء الله خان هم په دې رايه دئ چي احمدشاه بابا ته دا لقب صابر شاه نه بلکي ميا عمر ورکړی دئ چي شاه بابا ئې مريد وو (د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک، ۹۹ مخ).

لاکن داسي ښکاري چي ډاکټر ګنداسينګهـ د شير سرخ ملي جرګه په سطحي او څغلنده نظر څېړلې ده، حال دا چي قاضي عطاء الله خان او نور مشهور تاريخپوهان وايي چي د ۱۱۶۰ هجری قمری کال د رجب د مياشتي تر اتلسمي مخکي، د کندهار په شير سرخ کي يوه لويه جرګه چي په هغې کي ابداليان، غلجي، بلوڅ، قزلباش او هزاره ګان

شامل ول جوړه سوه او پر دې معامله ئې غور وکړ چې په کومه طریقه به بیا آزادي حاصلوو. پر دې خو ټولو اتفاق وکړ چې د ایران د حکومت سره په هر صورت اړیکی پرې کول په کار دي. ځکه چې ایرانیان او پښتانه یو پر بل باندي واک نه سي چلولای. بیا ئې دا فیصله وکړه چې موږ ته خپل یو پاچا په کار دئ چې ټول انتظامي او پوځي اختیارات ئې په لاس کي وي. په دومره قبیلو کي د پاچا انتخابول د پښتنو له پاره څه آسانه کار نه وو. هري قبیلې د تخت حاصلولو له پاره خپلې خپلې ادعاگاني وړاندي کولې او ډېر بحث او مناقشې وسوې. مؤرخین وايي چې تقریباً اته جرگې د دې معاملې د فیصله کولو له پاره جوړې سوې مگر هیڅ فیصله و نه سوه. تاریخپوهان وايي چې د احمدخان سدوزي ټول ټبر په هرات کي اوسېدی او په کندهار کي د هغه د نوم ورمخته کولو له پاره هم څوک نه وو. په دې اتو واړو جرگو کي احمد خان موجود وو او په ډېر غور او فکر سره ئې د هر قوم د مشر وینا د خپلې خپلې ادعا په هکله اورېدله. مگر هغه پخپله د خپل ځان له پاره حتی یو لفظ هم په دې ټولو اجلاسونو کي تر خولې و نه ایستی. په نهمه جرگه کي د حاجي جمال خان نوم چې د بارکزو مشر وو، تجویز سو او ډېر خلک ئې پر طرف ول مگر ځیني پیاوړي او سرلوړي خلک د هغه پر خلاف ول. ځکه نو د هغه نوم پاته سو. د دې بحث مباحثو په دوران کي یو فقیر چې په دې ټولوجرگو کي موجود وو او د احمد خان درنه او سنجیده رویه ئې په ډېر غور سره لیدلې وه او اغیزه ئې پر کړې وه، راپاځېد او

ویې ویل چې د خدای له پاره دا جرگې بس کړئ او نوري جگړې مه کوئ. دا څه شور او غوغامو جوړه کړې ده. خدای تعالی احمدخان په تاسو کي یو ډېر لوی دروند سړی او د عزت خاوند پیدا کړی دئ. هغه په ټولو پښتنو کي په اصل هم ښه دئ او قابل هم دئ. د دې له پاره د خدای کار مه ورانوئ، که نه د خدای قهر به درباندی نازل سي. دا الفاظ هغه درویش وویل او د اوریشو یوه قوده ئې د خوا پټې نه راپرې کړه او سمدستي ئې د احمدخان تر سر تاو کړه او هغه ته ئې وویل چې خدای تعالی دي دا ستا تاج کړي. په دې سره حاجي جمال خان او د نورو ټولو قبیلو سردارانو خپل خپل نومونه بیرته واخیستل. ځکه هغوی ولیدل چې احمد خان په جرگه والو کي تر ټولو خاموش انسان او تر ټولو هوښیار وو چې د ځان له پاره ئې هیڅ پاچهي نه غوښته او تر ټولو مهمه دا چې د یو درېیم کس له خوا پېشنهاد سو. نو هر یوه تر فصیح او بلیغ تقریر وروسته احمد خان ته بیعت وکړ. احمد خان هم د ټول قوم په مخ کي په بې غرضۍ د حکومت کولو او د ټول ملت د گډې ښېگڼې لټولو اقرار وکړ (د پښتنو تاریخ، لومړی جلد، ۹۷ ـ ۹۸ مخونه؛ د افغانانو تاریخ، فیریر، ۷۳ـ۷۴ مخونه).

خو د یادوني وړ ده چې قاضی عطاء الله خان او فیریر دواړو د دغه «فقیر» او «درویش» نوم نه دئ ذکر کړی مگر اشاره او قرینه واضح ده چې هغه صابر شاه ملنگ وو او فیریر ئې د شیر سرخ د زیارت متولي معرفي کوي (چې ده شیر سرخ نه بلکي شیخ سرخ لیکلی دئ). ولي ځیني مؤرخین (مثلاً غبار)

لیکي چې جرګه والو صابر شاه ته د منځګړي په حیث اختیار ورکړ او داسي کارې چې د دې جرګې غړي نه سره جوړېدل، څو چې ګډه فیصله ئې وکړه چې د جرګې یو برخه وال به حَکم ټاکي او هغه چې هر څوک د پاچا په حیث وټاکی، ټوله به ئې مني او بیعت به ئې کوي. دا حکم یو روحاني شخص صابر شاه وو، چې په هیڅ قوم، حتی په کندهار پوري ئې اړه نه لرله. د کندهار بېلابېلو طبقو هغه ته خاص ارادت او احترام درلود او د هر چا د باور وړ وو. دغه سیاست مدار صوفي هم را ولاړ سو او احمدخان ابدالي ئې د پاچا په حیث معرفي کړ او د غنمو یو وږی ئې د تاج په توګه د هغه په خولۍ کې نصب کړ (افغانستان د رمسیر تاریخ، ۳۵۵مخ).

دا طبیعي ده چې احمدخان صابرشاه ته ډېر زیات احترام درلود. د کابل والي (نواب ناصر خان) وویل چې زه یوه ورځ د احمد شاه دربار ته ولاړم. ما ولیدل چې احمد شاه پر تخت ناست وو او یو لوڅ لغړ او په خاورو لړلی ملنګ ئې په غیږ کې غزېدلی وو. ملنګ په وار وار هغه تر پزې او غوږو نیوی او راکش کوی او ورته ویل به ئې چې: «او افغانه، ګوره ته ما پاچا کړی یې». او احمد شاه په داسې حال کې چې سر ئې کښته اچولی وو، د ده سره په ډېره مهرباني خبرې کولې.

کله چې ما د خوني له خلکو د دغه ملنګ د نوم پوښتنه وکړه، دوی راته وویل چې دا ملنګ صابر شاه نومېږي (درانی احمد شاه: ۷۱مخ).

په هر صورت، کله چې شاه بابا د ۱۱۶۰ هجري قمري کال په وروستیو کې د هندوستان په نیامت له کندهاره پوځونه وخوځول، نو صابر شاه (رح) هم په یوه روایت تر (روهتاس) پوري او په بل روایت د لاهور تر (شاهدرې) پوري د دغو افغاني پوځونو سره مل وو. هو. د شاه بابا او افغان پوځ سره د هغه ملګرتیا یو ځل بیا د صابرشاه سیاسیتوب ثابتوي.

احمد شاه بابا ځکه لاهور ته وخوځېد چې والي (شاهنواز خان) د لاهور اخیستلو ته وربللی وو چې علت ئې د مغولي واکمن محمدشاه سره د هغه مخالفت وو. خو وروسته د شاهي فرمان او صدراعظم د هڅونو له امله بیرته د ډیلي سره پخلا او د احمدشاه بابا پر خلاف سو. نور نو اوبه تر ورخ تېرې سوي وې او شاه بابا حرکت کړی وو.

په هر صورت، شاه بابا د شاهنواز خان د دې اوښتي موقف په اورېدو سره اندښمن نه سو. د ده پوځ د جیلم پر خوا وخوځېد او د روهتاس چونۍ ئې پرته له مقاومته ونیوله. شاه بابا له همدې ځایه خپل پیر (صابرشاه) د خپل ضراب باشي (محمد یار خان) سره لاهور ته واستاوه. په ظاهري توګه د پیر استولو مقصد دا وو چې هغه هلته د خپلي مور سره وګوري او د ځینو سیمه ییزو ولیانو زیارت وکړي. پیر لاهور ته له رسېدو وروسته د مفتي عبدالله په کور کې اوسېدی. د ده شهرت د «نکرومانسر» په حیث یعني هغه څوک چې د مړو له ارواحو سره رابطه لري او پېش ګویي کولای سي، دمخه لا خپور سوی وو. په ښار کې دا آوازه وه چې صابرشاه د دې له پاره دلته

راغلی دئ چي د افغانانو په مقابل کي د مغولو پوځ او توپونه بې اغېزې کړي.

شاهنواز خان د داسي يو فوق العاده ملنګ د راتلو د خبر په اورېدو سره خپل دوه غټ افسران آدينه بيګ او ديوان کورامل ور واستول چي د ده د راتګ اصلي مقصد معلوم کړي او خوله ئې وپلټي. صابرشاه هغوی ته وويل: «زه د هيچا سره کوم کار او معامله نه لرم. د هغه درناوي تر څنګ چيزه ئې دغه ښار ته (چي زما د زوکړېدو ځای دئ) احساس کوم او دا په جرأت سره ويلای سم چي بې وفايي د خدای (ج) او بنده دواړو رضائيت نه حاصلوي. او دا هم بايد درته واضح کړم چي ستاسي توره د احمد ابدالي سره برابره نه ده».

دا مهال يو تن په خبرو کي ور ولوېد او ورته وې ويل چي: «ستا مقصد څه دئ؟ آيا زموږ توري د لرګي او د ده له اوسپني څخه جوړي دي؟»

پير په ځواب کي ورته وويل: «يا، دواړه ئې له اوسپني څخه دي، خو د ده اقبال او بخت لوړ دئ او ستاسي ستوري د هغه سره نه برابرېږي».

آدينه بيګ دا خبري شاهنواز خان ته ورسولې او هغه ئې په اورېدو ډېر خواشينی سو، او امر ئې وکړ چي ملنګ او د هغه ملګری (محمديار خان) دي بنديان او تر کلکي څارني لاندي ونيول سي، چي د دراني د کمپ لور ته و نه تښتي.

وروسته شاهنواز خان پخپله د پير سره وکتل او داسي ئې ترې وپوښتل: «احمد شاه ورور څه حال لري؟»

پير په جرأت سره ځواب ورکړ چي: «هغه د ولايتِ افغانستان او خراسان پاچا دئ او نيت لري چي هندوستان ونيسي او تاسو يوازي يو صوبه دار او د کوم بل يوه رعيت ياست. تاسي په کوم جرأت داسي خبري کوئ؟»

د انند رام د تذکرې پر اساس صابر شاه، شاهنواز خان ته وويل چي د هند امپراتور ستاسي سره ښه تمايل نه لري او هغه په دې لټه کي دئ چي ستاسي څخه غچ واخلي. دا به ستاسي په ګټه وي چي د احمدشاه سره يو ځای سی او په دې توګه مو عزت او شان لوړ سي او د هيواد وزارت به په قانوني ډول درکړه سي.

دغسي او ځينو نورو خبرو پر شاهنواز خان بده اغيزه وکړه. پير دی په بې ايمانۍ او بې وفايي وښکنځی او داسي سپکي سپوري يې ورته وويلې (مثلاً دا چي تا د احمدشاه سره خيانت کړی دئ...) چي دغه ځوان والي ئې زغم و نه کړای سو.

شاهنواز خان د زيات خپګان او قهر په سبب امر وکړ چي ملنګ دي بخشي خواجه عصمت الله ته وسپارل سي او هغه هم د هدايت سره سم د صابر شاه په ستوني کي د ويلي سوو سرپو په توپولو سره هغه ووژه (دراني احمد شاه: ۹۳ ـ ۹۴ مخونه: احمدشاهي شاهنامه: ۵۳۷ ـ ۵۳۸ مخونه؛ د افغانستان نوميالي، دريم ټوک: ۱۵۶ مخ؛ احمدشاه وارث مجدد، لومړی جلد: ۸۷ـ۸۸ مخونه).

خو د ځينو آثارو په حواله صابرشاه حتی د احمد شاه بابا له رضائيته پرته پخپله خوښه د روهتاس څخه نه بلکي له شاهدرې څخه

لاهور ته تللی وو. ویل کېږي چې ده د لاهور په بازار کې د کوچنیو خیمو هماغه زړه لویه تکرار کړه او ویې ویل چې زه به دې سیمې ته د احمدشاه حکومت راولم. شاهنواز خان دا خبري نه سوای زغملای او امر ئې وکړ چې ملنګ دې اعدام سي. ځیني لیکوال په دې نظر دي چې د ده سر په توره ووهل سو. د عمدة التواریخ په قول د ده خېټه څیري او د لاهور په کوڅو کې پر آس سپور وګرځول سو. د احمدشاه بابا د دې هیئت پر بل غړي (محمدیار خان) باندې کوم اعتراض موجود نه وو، نو ځکه خوشي او بیرته د تګ اجازه ور کړه سوه.

مګر د شاه بابا د سفر او حضر ملګری او منشي محمود الحسیني د یو عیني شاهد په توګه لیکي چې کله شاه بابا لاهور ته نږدې (شالیمار باغ) ته ورسېد، هغه نه غوښته چې د بې ګناه انسانانو وینې توی سي، نو صابرشاه ملنګ ئې له همدې ځایه د شاهنواز خان د پوهولو او هغه ته د نصیحت کولو له پاره ورولېږی. خو شاهنواز خان سر بېره پر دې چې د صابرشاه ملنګ نصیحت په باک رانه وړ، هغه ملنګ ئې په ساحري او جادوګري سره تومتي کړ او پسې ویې واژه (تاریخ احمد شاهی: ۴۱ مخ؛ د افغانستان نومیالي، دریم ټوک: ۱۵۵ـ۱۵۶ مخونه). خو د یو بل روایت له مخي صابر شاه د شاه بابا له خوا له شالیماره نه بلکې وختی لا آن له پېښوره لاهور ته لېږل سوی وو تر څو شاهنواز خان متوجه کړي (احمد شاه وارث مجدد: ۸۷ مخ).

مرحوم عزیزالدین وکیلي لیکي چې کله شاه بابا له پېښوره حرکت وکړ او پوځونه ئې لاهور ته نږدې ځای پر ځای سول نو د توپونو ږغونه ئې د شاهنواز خان تر غوږو ورسېدل. هغه د خپلو قوماندانانو سره په مشوره بوخت وو چې بخشي خواجه عصمت الله ورته راغی. شاهنواز خان ورڅخه وپوښتل چې صابرشاه څه سو؟ بخشي وویل چې هغه مې په دې لګه درګه (ازدحام او منډو) کې وواژه. شاهنواز خان له دردہ سور او شین سو او د مځکي له فرشه ئې یوه ډېره راکش کړه او بخشي ئې په ځکر کې په وواهه او داسې ئې مخاطب کړ: که مې د احمدشاه دراني سره لیدنه کتنه کوله او د کومي روغې جوړې هیله مې درې کوله نو تا دا هر څه په اوبو لاهو کړل. هغه وو چې بې له تېښتې ئې بله چاره نه لرله (احمد شاه وارث مجدد: ۸۸ مخ).

کله چې شاه بابا د خپل پیر له برخلیک څخه خبر سو نو ډېر غمجن سو او بې له ځنډه ئې د لاهور د ښار خوا ته مخه کړه او د ۱۷۴۸ د جنوری پر دوولسمه ئې لاهور ونیوی خو شاهنواز خان ډیلي ته وتښتېدی. شاه بابا وروسته د صابر شاه قبر ته ورغی او د هغه د قبر او زیارت د جوړولو هدایت ئې ورکړ. پس داسې ښکاري چې شاه بابا به دا مهال د خپل پوځ سره په پېښور کې نه بلکې لاهور ته نږدې مستقر وو، چې داسې ژر ئې پر دغه ښار حمله وکړه او په دې هکله د محمود الحسیني خبره صحیح ده.

د صابر شاه ملنګ د وژلو پېښه د ۱۷۴۸ کال د جنوری په لومړۍ هفته کې رامنځته سوه یعني دا غمیزه د شاه بابا د پاچا کېدو څخه

فقط پنځه نيمي مياشتي وروسته پېښه سوه.
اوس به د صابر شاه ملنگ په هکله هغه نظر وڅېړو چي نوموړی نه سيد بولي نه لاهوری، بلکي درانی او کندهاری ئې بولي.
مشهور افغان تاريخپوه، منجم او خطاط عزيزالدين وکيلي پوپلزی هغه څېړاند دئ چي همدا ادعا کوي. مرحوم وکيلي آن تر دې چي دغه ملنگ ته صابر شاه نه وايي بلکي (محمد صابر درانی) ئې بولي او هر ځای ئې په همدې نوم سره يادوي. دی د نورو تاريخپوهانو دا تسميه نه مني او وايي چي هغه صابر شاه نه بلکي درويش محمد صابر درانی دئ. مرحوم وکيلي داسي ادعا کوي: درويش محمد صابر درانی قندهاري الاصل د کوچنيوالي او زلمي توب راهيسي په ظاهره ځيري کالي اغوستل، مجذوب الحاله وو خو اصلاً د معنی او معرفته ډک او په عين حال کي د وجد او جذب څښتن وو او د خواصو د طبقې په وړاندي ئې لوړ مقام درلود. دی د جلال الدين حلال خور کړوسی او د قندهار د صحيح النسب خلکو څخه گڼل کېدی چي په کابل کي اوسېدی او د سيد حسين شيرازي او د ده په پيروی ځينو نورو تاريخ ليکونکو سهواً يا قصداً نعلبند حلال خور د لاهور اوسېدونکی بللی دئ (احمدشاه وارث مجدد: ۴۶ مخ). ولي مرحوم وکيلي د خپلی دغه ادعا د ثبوت له پاره او يا د نورو تاريخ ليکونکو د اړونده ادعا د نفي له پاره هيڅ دليل، مأخذ او شواهد نه دي وړاندي کړي. نو ځکه موږ اصولاً د ټولو تاريخپوهانو په پيروی هغه «صابر شاه، سيد او د لاهور اوسېدونکی» بولو ، نه «محمد صابر درانی قندهاری»!

اوس به د صابرشاه ملنگ په اړه درېيم نظر ته مراجعه وکړم. دا ډله ټپله صابر شاه په ډېر بد نوم او مرموزتوب سره غندي او ترټي. ځيني مغرضين او د افغاني تاريخ مسخ کوونکي عناصر تل ادعا کوي چي احمدشاه بابا ولي ناحقه پر هند باندي حملې کولې او په دې توگه ئې د وينو ويالې بهولې. ما (صمد) په خپلو دوو څېړنو کي دغسي تکراري او مغرضانه پوښتنو ته مستند ځوابونه ورکړي دي چي د لومړنۍ عنوان (پاني پت د افغانانو هلاکت ) وو او د دوهمي عنوان وو: (آيا شاه بابا د هند شتمنيو ته ورتی؟) دا دواړي ليکني مي د دغو مغرضينو سايټونو او يا د هغوی فېسبوکونو ته ور لېږلي دي، خو هيڅ غبرگون ئې نه دئ ښودلی. اوس دغو فدرال پالو، ببلتونپالو او پردي پالو عناصرو په خپلو مغرضانه او منافقانه ليکنو کي علامه حبيبی صاحب تر گرېوان نيولی دئ او هغه د شاه بابا په خاطر، د صابر شاه په خاطر، د پټي خزانې په خاطر او د پښتو ادبياتو د لټولو، ځلولو او تکثيرولو په خاطر سخت غندي، مثلاً:
دغه مغرضين په اغماض او مضرتوب سره د علامه حبيبي صاحب لخوا د صابر شاه د راپېژندلو خبره داسي اقتباس کوي: «په دې وخت کي صابر شاه نومی ملنگ د استاد لايخوار کابلي زوی چي د شير سرخ په هديره کي اوسېد له خپلي کوډلي راووت او هديرې ته نژدې له کښت څخه ئې څو وړي پرې کړل او د دې نوي انتخاب سوي زلمي پاچا په بگړۍ کي ئې د پاچهي د (خول) په توگه وټومبل (د

افغانستان لنډ تاریخ: ۵۲۳ مخ). دغه ټګماران په دې ارتباط داسي لیکي: دا صابرشاه د استاد لایخوار زوی بیا څوک دئ؟ او د کوم ځای او کومي خوا یو دم د افغانستان په تاریخ کي راشین سو او پاچا ئې انتخاب کړ او د هغو ټولو اختلافاتو سره سره چي د پېړیو راهیسي د پښتني قومونو تر منځ موجود دي او په تېره بیا په دې سیمه کي چي د غلجیو او درانیو او نورو قبایلو تر منځ شتون لري چي هیڅکله په هغوی کي د نظر یووالی نه دئ راغلی، دا څنګه کېدای سي چي د پاچا په ټاکلو کي، لکه حبیبي صاحب چي د صابر بابا داسي تعریف کوي، بې له چون و چرا څخه سوی وي او ټولو د دې عمل په وړاندي سکوت غوره کړی وي؟ باید عوامل بل ځای ولټول سي نه په هغه څه کي چي صابرشاه تر سره کړل....

دوی زیاتوي: ښاغلي حبیبي د محمدصابر شاه د پلار دغه کابلی هویت له کومه کړ؟ حال دا چي تاریخي اسناد او شواهد ځرګندوي چي محمد صابر شاه یو لاهوری وو او په تاریخ کي د یو خورا مشکوک هویت لرونکی دئ. چي نابېره په تاریخ کي را ظاهرېږي او د ملا ادریس سره په ګډه د احمد شاه په رکاب کي ورسره مل وي او هغه هند ته د سوقیاتو له پاره هڅوي... افغانستان هم یوه عجیبه ځمکه ده. د پاچهانو له پاره ئې همدغسي معجزې او الهامونه سوي دي... همدا علت دئ چي د ښاغلي حبیبی درواغونه (جعلیات) د خپلو منابعو او مأخذونو څخه د صداقت او دقت له مخي نه دي... بلکي دا هر څه ئې درباري تاریخ دئ... لاکن غبار د حبیبی چي په دربار کی به وو، برعکس یا به په زندان کي او یا به هم په تبعید کي و....

دغه بیلتون پال او پردي پال عناصر وروسته «پټه خزانه» یو درواغ او د علامه حبیبي اختراع بولي او وایي چي حبیبي صاحب د خپلي فقیري ژبي (چي د دربار والاوو ژبه هم وه) د رامخته کولو له پاره په لسګونو ناپیدا او مجهولي څېرې له ځانه جوړې کړې دي او هغوی ئې په درواغو سره پخوانی شاعران او اتلان بللي دي....

خو دغو منافقانو ته باید وویل سي چي ستاسي د مننی وړ تاریخپوه مرحوم غبار هم کټ مټ صابر شاه کابلی بللی دئ (افغانستان در مسیر تاریخ: ۳۵۵ مخ؛ احمد شاه بابا افغان: ۴۷ مخ). آن غبار تر حبیبي صاحب هم یو ګام مخته ځي او وایي چي د جرګې برخه والو صابر شاه ته اختیار ورکړ چي د دوی له منځه یو کس د پاچا په حیث غوره کړي (افغانستان در مسیر تاریخ: ۳۵۵ مخ). لا اوس هم دغه مغرضین مختوري نه دي؟ بل دا چي یوازي حبیبي صاحب نه بلکي په لسګونو مشهورو تاریخپوهانو او معتبرو آثارو همدا خبره په لږ توپیر سره ذکر کړې ده (مثلاً محمود الحسیني، احمدعلي کهزاد، فیض محمد کاتب، علامه رشاد، ګندا سینګهـ، منشي غلام حسین، شېرمحمد خان، امام الدین حسیني، فیریر، الفنسټن او ډېر نور او څار تاریخ پوهان او د هغوی معتبر آثار). نو آیا دغو ټولو د صابرشاه په هکله اړونده خبره درواغ کړې ده؟ که ځواب مثبت وي نو چا صحیح ویلي دي؟ خو دغو منافقانو هیڅ داسي

اثر او کوم تاریخپوه نه دئ ښودلی چي په دې هکله ئې دغه لويي جرګې او صابر شاه ته اشاره نه وي کړې. پس دغسي حاسد، بدخواه، کاذب او منافق عناصر به همداسي مختوري او تجرید پاته وي او الله به ئې ضرور د خپلو قصدي ګناهونو په سزا رسوي.

په هر صورت، اوس به بیرته اصلي موضوع ته راسم. کله چي صابر شاه (رح) شهید کړه سو نو په ببړه او وارخطایي سره پر یوه لوړه خاورو ته وسپارل سو.

د صابر شاه قبر د تاکسالې دروازې پر لور د یوې غونډۍ له پاسه د لاهور د لوی شاهي مسجد شا ته موقعیت لري. د ده زیارت ته یو تنګ سړک ورغلی دئ چي د انګرېزانو د وخت څو ودانۍ هلته جوړي دي. هیڅا ته د سړک نوم معلوم نه دئ او نه ئې څوک پوښتنه کوي. اوس د دې سیمي نوم «کلا ګهاټی» دئ.

د صابر شاه په دې مقبره کي د آصف جاه کاظمي نومي کس له خوا د صابر د نوم سره هم «کاظمی» او «مشهدي» لقب لیکل سوی دئ او قبر ئې هم هلته د زیارت په غولي کي جوړ دئ.

هر کال د شعبان د میاشتي پر پنځلسمه نېټه دلته عُرس وي چي په زرګونو خلک او عقیدت مندان د خپلو استدعاوو او نذر له پاره ورځي. د خلکو ورتګ زیات دئ او لنګر ئې هم چلېږي، یعني زایرینو ته ډوډۍ ورکول کېږي.

د صابر شاه ملنګ قبر لوړ پر تپه باندي جوړ دئ چي د دوو خواوو څخه زینې ورختلي دي. د مقبرې حالت ډېر ښه دئ او د هري خوا څخه په جالۍ پوښلی دئ. پر چت ئې د کوچنیو هیندارو ملتاني هنر ښکاري او د مرمرو فرش ئې پاک ساتل سوی دئ. د زیارت متولي (مجاور) یو لوستی کس دئ او د صابرشاه د قتل داستان ټول ورته معلوم دئ. لاکن دلته په کندهار کي هم د شیر سرخ زیارت یو متولی لري او هغه هم ځان د صابر شاه ملنګ له اولادې څخه بولي (صفیه حلیم، آنلاین تحقیقي مقاله).

ډاکټر ګندا سینګهـ د تاریخ سلطاني په حواله وایي چي ملنګ صابر شاه چي احمدشاه دراني پیر صابر باله، د پنجاب د لاهور اوسېدونکی وو چي د آسونو د نعلبندۍ کار ئې کاوه. د ده اصلي نوم رضا شاه وو او صابرشاه ئې د درویش یا ملنګ په شان لقب وو. د صابر شاه ورور باقر شاه نومی په ۱۲۱۲ هجري قمري کي په پېښور کي اوسېدی او د افغاني دولت څخه د کاله پنځه زره روپۍ ورته رسېدلې. د تاریخ حسین شاهي مؤلف امام الدین حسیني پخپله د ده سره پېژندګلوي درلودله او ویلي ئې دي چي نوموړی د ښه استعداد خاوند وو (دراني احمد شاه: ۷۰ـ۷۱ مخونه). یعني دا د تېمور شاه له مړیني څخه آن د پنځو کالو وروسته خبره ده چي د شاه بابا لمسیانو لا هم د صابر شاه کورنۍ ته دومره احترام درلود.

په هر صورت، که پورته ټول بیان ښه ترا وشنو، نو معلومه به سي چي صابر شاه ملنګ د احمدشاه بابا سره فقط څه باندي پنځه میاشتي تېري کړي دي او بس. خو په دې لنډه موده کي ئې په خپلو سترو کارونو سره د تاریخ پاڼې زریني کړي دي. صابر شاه د خپل سیاسي جرأت ، شهامت او درایت له مخي د

شیر سرخ نهه ورځنۍ خطیره او بحراني لویه جرگه د نفرت پر ځای په محبت سره بدله کړه او داسي کارنامه ئې اجرا کړه چي افغانان ئې تل ممنون او مدیون دي. دا لا څه، د ژوند په وروستیو څو ورځو کي ئې د لاهور د والي شاهنواز خان په مقابل کي دومره سیاسي او روحاني کفایت وښود چي له امله ئې د هغه حواس خراب او د پوځیانو جنگي روحیه ماته کړه. همدا تأثیر وو چي د هغه ۹۰۰۰۰ کسیز خورا منظم او هوسا پوځ د شاه بابا د فقط اتلس زره کسیز نامنظم او ستومانه پوځ په مقابل کي مات سو چي له امله ئې مغول په تېښته او افغانان په برم سره تر ډیلي تېر سول، خو ځان ئې قربان کړ. نو الله (ج) دي ئې د ټولو مرحومینو او شهیدانو سره جنت الفردوس ځای کړي. هو، د صابر شاه یعني دغه زړه ور سیاسي ملنگ د شهادت ۲۶۶مه کالیزه دي قایم او دایم وي.

**اړونده مأخذونه**:


۱. دراني احمد شاه، د اوسني افغانستان پلار؛ ډاکتر گندا سینگهـ، پښتو ژباړه: د سرمحقق مرستیال نصرالله سوبمن، دوهم چاپ، دانش مطبعه، کابل، ۱۳۸۸ لمریز.
۲. غازي احمد شاه ابدالي؛ څېړندوی قیصر علي آغا، پښتو ژباړن: مولوی محمد غفور پیروز، پوپل زی دامانی خپرندویه ټولنه، کوټه، ۱۳۸۷ لمریز.
۳. د افغانستان نومیالي، دریم ټوک؛ عبدالرؤف بېنوا، دولتي مطبعه، کابل، ۱۳۵۶ لمریز.
۴. تاریخ احمدشاهي؛ محمودالحسیني، دانش خپرندویه ټولنه، پېښور، ۱۳۷۹ لمریز.
۵. احمدشاهي شاهنامه؛ حافظ مرغزی. پېژندنه او تعلیقات: علامه اکادیمیسن پوهاند عبدالشکور رشاد؛ د متن سمَوَنه، سریزه او لمنلیکونه: محمد معصوم هوتک، علامه رشاد اکاډیمي، کندهار، ۱۳۸۷ لمریز.
۶. احمدشاه وارث مجدد امپراتوري افغانستان، جلد اول؛ عزیزالدین وکیلي پوپل زایي، مطبعه دولتي، کابل، ۱۳۵۹ ش.
۷. سراج التواریخ، جلد اول، فیض محمد کاتب، کابل، ۱۳۳۱ هجری قمري.
۸. افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار، کابل، ۱۳۴۶ شمسي.
۹. د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، دریم چاپ، قاضي عطاء الله خان، یونیورسټي بُک ایجنسي، پېښور، ۲۰۱۲ میلادي.
۱۰. د افغانستان لنډ تاریخ؛ اووم چاپ، عبدالحی حبیبي؛ مترجم: عبدالرؤف بېنوا، صدیقي خپرندویه ټولنه، کوټه، ۱۳۹۲ لمریز.
۱۱. احمد شاه بابا افغان؛ میر غلام محمد غبار؛ پښتو ژباړن: امین الله دریځ، دانش کتابخانه، پېښور، ۱۳۷۷ لمریز.
۱۲. تاریخ افغانها؛ ژوزیف پیری فیریر: ترجمهٔ فارسی آنلاین: سهیل سبزواري، جون ۲۰۰۹ میلادی.
۱۳. صابر شاه ملنگ؛ مېرمن صفیه حلیم، آنلاین تحقیقي مقاله، اپریل، ۲۰۱۴.



څېړندوی عبدالغفور لېوال

# اسطوره



**الف : اسطوره څه ده ؟**

المعجم الوسط فرهنگ اسطوره د (خرافات، افسانه) په ماناوو رااخیستې ده (معجم: ۴۱).

خو د اسطورې مانا تر دې ډېره پراخه ده:

اسطوره له (اسطار، اسطاره، اسطیر، اسطیره، اسطور، اسطوره) څخه جوړه شوې ده «سیوطي» فکر کوي چې اسطوره داسي یو جمع نوم دئ، چې مفرد نه لري خو ابوعبیده وایي چې اساطیر د اسطاره جمع ده. (دهخدا ۲ ټوک، ۲۰۱۳). ادبي دایرة المعارف هم اسطورې هغه خرافي یا نیمه خرافي افسانې او کیسې بولي چې د مافوق الطبیعه څواکونو په اړه نسل پر نسل را پاته وي.

دا په دې مانا چې اسطورې د پخوانیو انسانانو له عقایدو سره اړه لري (ادبي دایره المعارف: ۴۶۳).

آریانا دایرة المعارف اسطوره داسي راپېژني:

"اسطوره: په انگریزي ژبه کي اسطورې ته Myth او اسطورو ته Mythos وایي. په عربي کي افسانه داسطورې په معنا او مفهوم کاروي، په یونا نی ژبه کي Myth کلمه له Mythos څخه مشتق شوې ده. همدارانگه په یوناني ژبه کي د افسانې کلمه د (میتولوژي) په معنا او مفهوم راغلې ده، چې له دوو کلمو (میتوس) او (لوگوس) نه جوړه شوې ده، چې په لومړي سر کي د هرډول کیسې په معنا استعمالېده. هومه روس دا کلمه د حکایت او

---

(۱) عبدالحسین سعیدیان، دایرة المعارف ادبی، ۴۶۳مخ.

سرگذشت په معنا راوړې ده، پندار دا کلمه د میلاد نه پنځه پېړۍ مخکې د سرگذشت او افسانې په معنا وکاروله. (آریانا، پښتو، ۳۷۸ لومړی ټوک).

دایرة المعارف فارسي د اسطورې په اړه لیکي:

"اسطورې د فوق طبیعي ځواکونو او ارباب الانواعو په اړه هغه خرافي یا نیمه خرافي داستانونه دي، چې د روایت په بڼه له پرله پسې نسلونو څخه یو بل ته رالېږدي، اساطیر د بشري وگړیو د پهلوانۍ له کیسو او د پېریانو او ښاپیریو له کیسو سره، چې د ساتیرۍ له پاره جوړېږي، توپیر لري. اسطورې له دیني روایاتو سره اړیکې لري او په یو شمېر ادیانو کې همدا اسطورې تکرارېږي. د اسطور و یو غرض د نړۍ توضیح او بیان دئ او جوړوونکي ئې د طبیعي پېښو له پاره شخصیت ټاکي. ائوهمروس (څلورمه مخزیږدي پېړۍ) اسطورې د ربښتینو قومونو له مبالغې ډکې کیسې گڼلې". (دایرة المعارف فارسی: ۱۱۷).

د دې ټولو قاموسي پېژندنو په منځ کې زما له پاره د فرهنگ فارسي معین رااخیستنه ځکه جالبه وه، چې د دې فرهنگ له ن ظره د عربي اسطوره د لاتین له هیستوري (Historia) سر ه اړیکه لري دا فرهنگ کاږي:

اسطوره ( e– ) ostura [= اسطور = اسطاره، معر. یو. لا . historia ] (ا.) ۱– افسانه، قصه . ۲–سخن پریشان، ج. اساطیر . (فرهنگ معین: ۲۵۶).

داسې ښکاري، چې د عربي اسطوره له همدې یوناني – لاتیني ریښې هیستوري یا هیستوریا سره کومه اړیکه لري. په تېره بیا هغه وخت چې په عربي کې ئې له (سطر) پرته بله ریښه نه شو موندلای.

ډاکتر سیروس شمیسا هم باور لري، چې د اسطورې ریښه له هیستوري سره همریښه ده، دی لیکي:

"اسطوره (Myth) هغه زاړه داستانونه دي، چې یو مهال لرغونیو قومونو ربښتیا گڼل، خو اوس افسانوي شوي دي او څوک ئې نه مني. ځکه مانا ئې د اسطوره له لغت څخه څرگندېږي، چې له History او Story سره یوه ده. اسطوره یو مهال (هیستوري) وه چې اوس ئې داستاني (ستوري) ځانگړنه خپله کړې ده". (نقدادبي: ۲۶۹).

د دې په وړاندې اسطوره د (افعوله) په وزن عربي کلمه گڼل شوې ده، چې د (سطر) له ریښې څخه به جوړه شوې وي. په دې اړه میر جلال الدین کزازي لیکي:

"اسطوره د لیکلو پا مانا له سطر څخه راوتلې ویی انگېرل شوی دئ، چې په عربي کې اسطوره او اُسطیر چې جمع ئې اساطیر کېږي د لیکلو په مانا کارول شوی دئ او تسطیر، چې په دې ژبه کې د سطر تفعیل دئ، د افسانو د راټولولو په مانا کارېدلی دئ". (رویا، حماسه، اسطوره ۲).

خو تر دې یادښت لږ وروسته ښاغلی کزازي دغه باور کمزوری گڼي او اسطوره بیرته هماغه د هیستوري او ستوري له ریښې څخه رغېدلې کلیمه گڼي او لیکي:

"شاید دغه ویی له یوناني یا لاتیني څخه عربي ته ورل شوی وي؛ او د یوناني او لاتیني (هیستوریا) Historia بدله شوې بڼه وي چي د رښتینو خبرو یا خبر او یا هم د رښتیا د پلټني په مانا ده. له دې کلمې څخه په فرانسه کي (ایستوار) Histoire او (استوري) Story په انګرېزي کي، چي د تاریخ، داستان او کیسې مانا لري، راپاته ده)، (رویا، حماسه، اسطوره ۲).

په اروپایي ژبو کي اسطوره میت Myth ګڼل کېږي، چي د یوناني ژبي له Muthos څخه اخیستل شوې ده او د کیسې او حکایت مانا لري او له دې څخه د میتولوژي Mythology اسطوره پېژندنه او Mythography اسطوره لیکنه مفاهیم هم جوړ شوي دي.

په یوناني ژبه (Mythos) د (Logos) په مخامخ ټکي کي چي د عقل او پوهې مانا ئې لرله کارېده، چي په دې توګه میتوس تر ډېره بریده له وهم او خیال څخه را پنځېدلې ګڼل شوې ده.

اوس به د اسطورې تر لفظي مانا لږ وړاندي ولاړ شو او وبه ګورو چي اسطوره په یوه پراخه مانایي زمینه کي څه ته وایي؟

اسطورې د پخوانیو انساني ټولنو تر منځ د دوی د باورونو، وهمونو، خیالونو، وېرو، خوبونو او غوښتنو هغه افسانه یي شوي خبري دي، چي د دوی له رښتیني ژوند او عقیدې سره خامخا اړیکه لري. اسطورې به له مبالغې سره مل وې، تخیيلي موجودات، تر طبیعت پورته ځواکونه، د طبیعت توکیو ته د تجسم یا شخصیت ورکولو (Personification) هنر پکښي لیدل کېږي. ډېر ځله دغه ډول شخصیت ورکول په طبیعت کي د انسانانو د بېلابېلو غوښتنو، وېرو او رواني سکون د لټون له پاره په چوکاټ کي ځای مونده، چي ورو ورو په باورونو او ګروهو بدلېدل. د بېلګې په توګه په ګڼو پخوانیو بشري حوزو کي د لمر، اوبو، کرني، ښېرازۍ او نورو اړتیاوو له پاره ارباب الانواع شته چي دا د بشریت مادي اړتیاوو ته د ځواب ویلو له پاره تخیيل شوي ول، همدا راز د تالندې، بریښنا، باران او نورو طبیعي پېښو له ډاره هم قهرجن ارباب الانواع مجسم شوي ول، چي له طبیعت یا تر طبیعت پورته ځواکونو څخه ئې د انسان وېره ښووله، رواني اړتیاوو لکه وېري، غوسې او مینې هم خپل ارباب الانواع درلودل؛ دا ټول ښیي چي ټولو افسانوي (اساطیري) موجوداتو د پخوانیو انسانانو له ورځني ژوند سره تړاو درلوده.

د اسطورو استعاري او سېمبولیک ارزښت ډېر د پام وړ دئ، ځکه خو هره اسطوره د انسانانو د یوه ژور او لرغوني باور له پاره د استعارې په توګه کارول شوې ده. په بله ژبه اسطورې هغه قراردادي سېمبولونه دي، چي انسانان ئې د خپلو ګډو باورونو او اوهامو له پاره ټاکي، چي په خپله لنډه جوله کي ئې تر شا د پرتو پراخو مفاهیمو، پېښو او اشیاوو استازیتوب وکړای شي.

د اسطورې استعاري اهمیت دومره ډېر دئ، چي نامتو انګریز ژبپوه ماکس مولر (په جرمني کي په ۱۸۲۳ م زېږېدلی) ئې په ژبه

کي له ګډوډۍ او نارسايۍ څخه رامنځته شوې ګڼي. دی فکر کوي:

"اسطورې د حقیقت د استعاره یي بیان له پاره جعل شوي دي، کله چي په یوناني ژبه کي وایو: چي لمرخاته په سپیده داغ پسي راځي نو داسي به ئې وایو چي (آپولون) په (دافنه) پسې راروان دئ. [آپولون د لمر او دافنه د سپیده داغ ارباب الانواع دي]". (دایره المعارف فارسي: ۱۱۷).

مولر فکر کوي، چي ژبه نه شي کړای د انسان تفکر او اندېښنه په بشپړه توګه بیان کړي، ځکه خو له استعارو څخه مرسته غواړي او په دې توګه اسطورې رامنځته کوي. دی اسطورې ته د هغه سیوري په سترګه ګوري، چي ژبه ئې پر فکر غورځوي.

موږ په خپله زمانه کي هم د خپلو فکري تومنو د شرحي له پاره له اساطیري استعارو څخه کار اخلو، لاهم نفس له (ښامار) سره تشبیه کوو او بې عاطفې بنیادمان له (دېوانو) سره. کله چي د تخیل په وزرونو الوځو، ځان راته (سیمرغ) ښکاري او د سترو او بخښونکو انسانانو سخاوت ته د (هما) د سیوري په سترګه ګورو. د افغانستان او ایران پاچایانو تر وروستیو کلونو پوري (ذات همایوني) ګڼل کېدل، مانا ئې دا وه چي دوی د ښکمرغۍ د (هما) تر سیوري لاندي دي، تاسو ګورئ، چي اسطوره تر نن ورځې هم خپل اغېز لري.

داسي ښکاري، چي موږ له اسطورو څخه د خپل فکر د بشپړ تمثیل له پاره مرسته غواړو، کله چي د عادي تصور له کچ څخه د ورپورته مفهوم په اړه خبرې کوو، د عادي اشیاوو له بریده وزو او خبره راڅخه افسانوي کېږي، تاسو به په ورځنیو خبرو کي اورېدلي وي، چي د یوې پېغلي ښکلا د ارم له ښاپېریو څخه ډېره ښووول کېږي.

زموږ اوسمهالي اتلان د دې له پاره چي غیر عادي وښوول شي نو له ناڅرګندو اسطورو سره ئې ورته ګڼو او یا ئې پخپله د زمانې اسطوره ګڼو. له دې ټولو څخه ښکاري، چي د ماکس مولر ادعا تر یوه بریده خپل منطق لري، ځکه ډېر څله ژبې د خپلي دندې د بشپړولو له پاره اسطوره د انساني تفکر د تمثیل له پاره کارولي دي. خو د اسطورې ټول ماهیت دا نه دئ، بلکي دا د زمانو په اوږدو کي د اسطورو د بیابیا رایادېدلو او ژوندي پاته کېدلو د ماهیت یوه برخه ګڼلای شو. اسطورو ته د ژبې استعاري اړتیا د هغو د تاریخي لېږد او دوام لامل ګرځېدلای شي، خو وجودي منطق ئې نه شو ګڼلای، دا چي اسطورې ولي او څنګه رامنځته کېږي، وروسته به په تفصیل پرې خبرې وکړو.

د اسطورود پېژندني په برخه کي د هغوی تاریخي، اعتقادي او یا هم فرهنګي ماهیت په پام کي ساتل کېږي، ځکه اسطوره هیڅکله د تجربې وړ نه ده. عجیبه دا ده چي د تاریخ په اوږدو کي تل اسطورې رامنځته شوي، نقل شوي دي، خو په یوه ټاکلي زمان او مکان کي د هیچا له پاره د لمس او تجربې وړ نه وې. ک. ک روتون د خپل کتاب (اسطوره) په سریزه کي لیکي:

"اسطوره پېژندنه یو مستقل بحث دئ،

که څه هم زموږ په پوهنیز نظام کي د بېل علم په توګه نه دئ پېژندل شوی او هیڅا په اسطوره پېژندنه کي ډیپلوم نه دئ اخیستی، خو زما په ګومان اسطورې په نورو څانګو کي جدي بحث ګڼل کېږي، لکه په زړو ادبیاتو، انسان پېژندني، عامه ادبیاتو، د ادیانو په تاریخ، ژبپوهنه، ارواپوهنه، د هنر تاریخ او هنر کي، چي هر یو ئې له اسطورو سره ټینګي اړیکي لري". (اسطوره: ۶).

اسطوره له خرافاتو او ولسي نکلونو سره توپیر لري:

له هغو فولکلوري نکلونو سره چي موخه ورڅخه پند، عبرت او یا یوازي تفریح وي یا هم له هغو خرافاتي باورونو سره چي د تړیکو یا تشو وهمونواو انګېرنو په څېر په انسانانو کي شته د اسطورې توپیر او بېلوالی څرګند دئ، اسطورې هغه باورونه دي چي یو مهال انسانانو پرې اعتقاد درلوده یا ئې تر اوسه یو شمېر خلک د اعتقادي ارزښتونو په څېر مني.

له دین او عقیدوي سرچینو سره هم اسطوره توپیر لري په بله مانا اسطورې په خپله ادیان نه دي، بلکي اسطوره د اعتقادي روایاتو د تفسیرولو او مانا کولو هڅه ده.

ټولي اسطورې مذهبي او دیني نه دي، بلکي ټولنیزي او تاریخي اسطورې هم شته، چي د ارباب الانواعو ونډه پکښي ډېره کمه یا هم پر نشت شمار وي.

شمیسا لیکي:

"د اسطورې کار د خارق العاده اعمالو او مافوق طبیعي اتفاقاتو شرح، توضیح او تفسیر دئ او ډېر ځله هغه داستانونه دي، چي د اتلانو، ارباب الانواعو او حیرانونکیو څواکونو د کړنو په اړه رانقل شوي وي... ځکه خو ویلای شو: اسطوره هغه مذهب دئ، چي نور نو څوک پرې باور نه لري". (نقد ادبي: ۲۷۰)

اسطوره له هغو ادبي هنري داستانونو او نکلونو سره هم توپیر لري، چي یوازي د بشري اړیکو په چاپیریال کي لیکل کېږي او هیڅ ډول ماوراء الطبیعي څواکونه پکښي ونډه و نه لري. له دې ټولو سره سره د اسطوره پېژندني په بحثونو کي ګورو، چي دغه بحث په ګڼو بشري علومو کي ځان راڅرګندوي، ځکه خو فکر کېږي، چي انسانان په خپل ګډ لاشعور کي د اسطورو له پاره یو جلا ځای ساتلی دئ او ډېر ځله ئې له وېرو، عواطفو، شا ته وهل شویو غریزو او عقدو سره د اسطورو اړیکه شته، له همدې پلوه د اسطورو د پېژندني پر مهال د هغوی تر عیني او فزیکي وجود ډېر د هغوی لاشعوري او ذهني حضور مطرح دئ، چي په دې اړه به وروسته په نورو بحثونو کي تفصیل ولولئ.

## ب: اسطورې څنګه رامنځته کېږي؟

ډېرو لرغونیو انسانانو، چي د خپل ژوند په چاپېریال کي هره نوې ښکارنده (پدیده) لیدله نو پلټونکي ذهن به ئې خامخا پوښتنه کوله چي دا څه شی دئ؟ ولي دئ؟ له کومه دئ؟ څومره به وي؟ او چېرته به وي؟ ... دې پوښتنو ته د ځواب موندلو هڅو له یوې خوا

انسانان تجربو او بیا (د تجربو د تراکم په پایله کې) پوهې ته ورنږدې کول، له بلې خوا ئې د اسطورو لومړني څرکونه د دوی په ذهن او باورونو کې رامنځته کول. هر کله به چې دوی د یوې طبیعي، انساني یا ماورالطبیعي ښکارندې په اړه خپلو پوښتنو ته عقلي، علمي او عیني ځواب نه شو موندلای نو ذهني – رواني لارو چارو ته به ئې پناه وړه او اسطوره يې تفکر (یا تخیل) به ئې پیل کړ. د اسطورو لومړنۍ ریښې د لرغونیو انسانانو په هماغه پلټونکي ذهنیت کې غځېدلي دي. مګر دا په دې مانا نه ده چې اسطورې یوازې په لرغونیو زمانو کې رامنځته کېدې او ګواکي په راوروسته زمانو کې ئې بېلګې نشته. اسطورې د بشري تاریخ په ټولو دورانونو کې رامنځته شوي او لا هم رامنځته کېږي، که موږ په تاریخ کې یوه دوره د اسطورو یا افسانو د دورې په نامه پېژنو لامل ئې دا دئ، چې له هغو دورانونو څخه بل څه نه دي راپاته، په بله وینا موږ د هغو دورو مادي یا لیکلي (مکتوب) اسناد او توکي په لاس کې نه لرو، ښایي له هغو دورو څخه یوازې راپاته افسانوي روایات وي چې هغه زمانې راپېژني او دا روایات هم له یوه نسله و بل ته په شفاهي بڼه رانکل شوي دي. تر هاغې زمانې راپه دې خوا چې لیک رامنځته شوی او د تاریخ د نسبتاً نوي دورې پریمانه مادي توکي راپاته دي اسطورې له نورو بشري میراثونو سره ګډې شوي دي او په دې توګه وینو چې په نویو دورو کې اسطورې له ادبیاتو، باورونو، بشرپېژندني، فلسفې او نورو بشري پوهنو سره ګډې وډې تر موږ رارسېدلي دي.

د اسطورو د رامنځته کېدو په اړه سیروس شمیسا د میرچیا الیاده په روایت کاږي:

"اسطوره تل د یوه خلقت د روایت متضمنه ده، مانا اسطوره ښیي چې څنګه یو څه رامنځته کېږي، شتون مومي او خپله هستي ئې راپیل کړې ده. د دې خلقت منشأ میتافزیکي ځواکونه دي". (نقدادبي: ۲۷۰)

د اسطورو د رامنځته کېدو بستر له تاریخي پلوه یا د بشري ټولنو تر منځ وي یا د پراخو مدني حوزو په کچه او یا هم یوازې د اولسونو په ګډو شعوري او یا لاشعوري زیرمو کې. د اسطورو د رامنځته کېدو مهال ټاکنه ناشونې ده، ښه به وي چې ووایو اسطورې خپله زمانه او ځای پخپله ټاکي او د دې تر پولو بهر ئې تاریخي ځای و زمان نه شو ټاکلای، د دې بحث پایله دا ده، چې د اسطورې اعتبار فی نفسه دئ او علمي یا تاریخي اعتبار نه شي درلودلای.

هغه لرغوني بشري مېشتځایونه چې تر ډېره د اوبو تر غاړو جوړ شوي ول او په غرونو او غونډیو کې د لومړنیو انسانانو د ژوند نښې پکښې پاته دي، په تېره بیا د لرغونو مغارو په دېوالونو او چتونو کې د لومړنیو انسانانو له نقاشیو او رسمونو څخه ښکاري، چې د طبیعت په اړه انساني وسوسو اسطورې رازېږولي دي. انسانانو چې د لومړي ځل له پاره د تالندې ګړز واورېده نو ګومان ئې وکړ چې اسمان ورته غوسه دئ او هر کله چې دی کوم ناوړه کار وکړي نو له داسي غوسې سره به

مخامخ شي، دغي وېري د تالندي افسانوي ځواک تصوير کړ، لږ وروسته چي باران وورېده او باران ته د انسان تنده او اړتيا احساس شوه، د تالندي ځواک بيا راياد شو، له دې سره د تالندي په اړه د هغې زمانې انسان د وېري او هيلي يو ګډ احساس ومونده فکر ئې وکړ، چي ښايي له دې ځواک سره چي کله ګوابنوونکي غړونه کوي او کله هم د باران د اورېدو زيرى وركوي، خپله اړيکه جوړه کړي.

په يادو مغارو کي د لمر ډول ډول تجسم (اسطوره يي Personification) ښيي چي د لمر، رڼا، ورځي او د نارينه توب له پاره استعاري ځواک همدغه مهال زېږېدلى دئ، چي وروسته وروسته ئې د بېلابېلو اسطورو تر منځ حضور ليدلای شو.

ښامار يو اسطوره يي ځناور دئ، دا ګوابښمن او وېروونکی ځناور لا چا نه دئ ليدلى، خو تقريباً په ټوله نړۍ کي حضور لري، په زرګونو افسانې شته، چي ښامار پکښي يو مهم کردار بلل کېږي، خو د دې په وړاندي ډايناسوران چي يو مهال ول او په ميليونونو کلونه ئې پر ځمکه ژوند کړی او بيا د طبيعت د ناسازګاره شرايطو له کبله ئې نسل له منځه تللی، په هيڅ اسطوره يي افسانه کي حضور نه لري، چي داولي؟

ښامار چي د لوی مار اسطوره يي شوې بڼه ده تل د **انسانانو د** افسانوي وسوسو ملګری وو، مار په ډېرو اسطورو کي شته، ډېر ځله شيطان د يوه **مار په** شکل کي راڅرګندېږي، **په** رواياتو کي **راغلي دي، چي** بودا له کوم چا سره وعده کړې وه او د هغه

ليدلو ته ورروان وو، مزله ستومانه کړ او د يوې ونې ډډ ته ئې ډډه ولګوله، خوب ورغی داسي چي د وعدې د خلاف کېدو وېره رامنځته شوه، همدا وخت يو مار راغی او دی ئې وچيچه، بودا خوږ راوېښ کړ، مار ئې وليده او مننه ئې تري وکړه، چي دی ئې پر خپل وخت راوېښ کړی دئ.

د پخوانيو ارباب الانواعو په اړه په يوه بحث کي لولو:

موسی عليه السلام ماران د بدمرغۍ پيام راوړونکي ګڼل، جالبه ده چي د جرمني د شمال په لرغونيو افسانو کي راغلي، چي که د چا د پولي پټي په چارچاپېره کي مار ولېدل شو، نو د ځمکي خاوند بايد د يوه بد خبر په تمه کښېني. تر تاريخ وړاندي دورو شواهد راښيي:

مار او ښامار د انسان له پيدايښت سره اړيکي لري.

مار او ښامار له ستوريو سره هم اړيکي لري.

ماران الوتلی شي.

ماران د اور په څېر د کرکي وړ ذات لري.

له بده مرغه لا تر اوسه په لرغونو افسانو او حماسو کي د مارانو د پيدايښت په اړه ژوري څېړني نه دي شوي [په ځينو لرغونيو لوحو کي] وينو چي لمر د هرمونو پر سر ځلېږي او د هر هرم تر څنګه مار يا راون دئ او يا الوځي. (طلای خدايان: ۸۶).

ښامار په ځينو غربي افسانو کي الوځي او **ځيني انسانان، چي د** ځانګړي بخت ستوري **خاوندان دي او يا له** پيدايښت څخه پر خپله ډډه يا مټ د ښامار نښه لري، کرای شي ښامار

ځانته رام کړي.

په پښتني او آریایي اساطیرو کې ښامار هغه لوی مار دئ، چي له خولې څخه ئې اور بادېږي او په ځینو افسانو کې هره ورځ یو ځوان یا یوه پېغله خوري. د فردوسي په شهنامه کې لولو، چي شیطان ضحاک پاچا پر ولیو ښکل کړ او د هغه د ښکلولو پر ځای دوه ماران راشنه شول، چي هره ورځ ئې د دوو ځوانانو د سر ماغزه خوراک وو.

خو همدغه ځناور بیا په چین کې سپېڅلی ګڼل کېږي او فکر کېږي، چي د بختورو خلکو د نیکونو ارواوي په ښامار بدلیږي:

"پر ښامار د نیکونو د ارواوو بدلېدل، د دې له پاره دي، چي له هغو بدو ارواوو څخه کسات واخلي چي په بدو ځناورو بدلېږي. ښامار په چین کې عجیب الخلقته ځناور نه دئ، بلکي یو نیک رب النوع دئ، چي پر باران او د اوبو پر بهیر حکم چلوي".

یو شمېر څېړونکي فکر کوي، چي ښامار د ډایناسورانو بدل شوی تصور دئ، چي د انسانانو ذهن ته رسېدلی دئ او که نه هغه موجود ستر ځناوران ولي له بشري افسانو څخه ورک شوي دي او پر ځای ئې یو داسي ځناور مشهور شوی دئ، چي عیني وجود ئې چا نه دئ لیدلی.

د سیمرغ، هما او نورو افسانوي موجوداتو کیسه همداسي درواخلئ.

له دې ټولو څخه ښکاري، چي اسطورې د انسانانو په ذهنونو (تر ډېره په ګډه ناخوداګاه) کې سره ورته وجود لري او له لرغونو زمانو څخه تکرارېږي.

پخوانیو انسانانو چي د لومړي ځل له پاره کالهېنداره (جنتري – تقویم) جوړوله نو خپل وېش ئې د طبیعت له وېش سره سم وسنجاوه، تر ټولو دقیق وېش د لمریزو میاشتو وېش وو، چي یو کال ئې پر دوولسو میاشتو وېشه. هري میاشتي خپل نوم درلوده. په لمریز کال کې د (وري، غویي، غبرګولي، چنګاښ، زمري، وږي، تله، لړم، لیندۍ، مرغومي، سلواغه او کب) نومونه اساطیري نومونه دي. ایا کله مو له ځانه پوښتلي چي ولي پر دغو میاشتو داسي نومونه ایښوول شوي؟ هر نوم د یوې زمانې په اړه د بشري ذهن هغه تصویر راښیي چي د طبیعت له بدلون څخه ئې تجربه کړی دئ.

مصریانو لیدل چي (نیل) د سپوږمۍ له دوران سره یو ځای مدوجذر لري، ځکه ئې د سپوږمیز (قمري) کال بدلون ته لومړیتوب ورکړ. خو په ختیځ (اریانا) او ښایي په ټوله ایندواروپایي حوزه کې د لمریز اقلیم له بدلون سره د دوی د کرني فصلونو مخامخ اړیکه درلودله د همدې له پاره ئې لمریزه کالهېنداره جوړه کړه. خو هره میاشت د یوه ځواک په ظهور پوري تړل بیا د دوی د رواني انګېرنو اسطوره یي میراث دئ چي دا دئ تر ننه ورځخه کار اخیستل کېږي. وګورئ، چي اسطوره د انسان د ذهن پر پرده د طبیعت د بدلون لومړنی انعکاس دئ، چي دوی ورته یو استعاري نوم مومي او بیا ئې تلپاته کوي.

د اپلاتون د مُثل نظریه (د مغارې افسانه) له موږ سره مرسته کوي، چې د واقعیتونو پر افسانوي سیورو د خپل باور ریښې وپېژنو. هغه کسان چې په یوه تیاره مغاره کې په ناسته محکوم دي او مخونه ئې د مغارې دېوال ته اوښتي چې نه شي کړای د مغارې خوله او بهرنۍ نړۍ وګوري، هاخوا له مغارې بهر اور بلېږي او رڼائې د مغارې مخامخ دېوال رڼاکړی دئ، هر هغه ژوندی موجود چې د مغارې له خولې څخه تېرېږي، سیوری ئې پر دېواله ښکاري او مغاره میشتي فکر کوي، چې همدغه سیوري د ژوندیو موجوداتو اصلي ماهیت دئ. اپلاتون غواړي وښيي، چې پر دې دنیا زموږ تصور د (حقیقت) په اړه هماغسي دئ، لکه د مغاره میشتو کسانو چې د ژوندیو موجوداتو د سیوریو په لیدلو سره همدا سیوري د هغوی حقیقت ګاڼه.

د حقیقت له سیوري څخه هره هغه خاطره چې زموږ په ذهن کې پاته کېږي او موږ ئې بیا بل چا ته بیانوو، چې هغه ئې بیا بل او پسې بل ته ور ولېږدوي، همدلته ده چې موږ د هغو اشیاوو په اړه یو اسطوره یې ماهیت رامنځته کړی دئ. ښایي له حقیقت سره همدومره نامخامخه اړیکه به وي چې ډېر ځله اسطوره د پوهې په وړاندې ودرېږي. درولان بارت له نظره:

"په اسطوره کې هر څه پېښیدای شي، ګواکې په هغې کې د پېښو لړۍ د هیڅ منطقي قاعدې پیروي نه کوي ... دلته هره د درک وړ اړیکه شونې ده". (اسطوره امروز: ۲۱).

اسطوره د طبیعت، انسانې ذهن او ژبې تر منځ په درېګوټیز (مثلث) کې رامنځته کېږي او بیا له یوه نسله بل نسل ته لېږدي.

دا چې ولې د اسطورو د زېږېدو په سرچینو کې د انسان لاشعور او رواني نړۍ مهمه ګڼل کېږي؟ پر دې به وروسته هم خبرې وکړو، خو دلته ئې همدومره یادوو، چې د اسطورو او خوبونو تر منځ هم عجیبې اړیکې شته. اسطورې د خوبونو په څېر پرېشانې دي، کېږې وړې څېرې، د انسانانو او ځناورو ګډون، په اسطوره کې هم هر هغه څه پېښیدای شي، چې په حقیقي دنیا کې ئې پېښېدل ناشوني وي او په خوبونو کې هم، د اسطورې په داخلي منطق کې هم د هر څه پېښېدل او حضور خپل اعتبار لري، کټ مټ داسې لکه په خوب کې چې تاسو ناممکنات وینۍ، خو هماغه شیبه دا نه شئ منلای چې رښتیا به نه وي، یوازې هغه مهال ئې په نارښتینولۍ باورمند کېږئ، چې راویښ شئ. په خوب او اسطورو دواړو کې واحد زمان او واحد مکان مانا نه لري، په دواړو کې اوسمهالي پېښې پېړۍ پېړۍ وړاندې پېښېدلای شي او د پېړیو وړاندې موجودات همدا اوس له تاسو سره خبرې کوي، له همدې ځایه ده چې د اسطورو لاشعوري زیرنځای او بیا ئې له ژبې سره اړیکې خورا په زړه پورې بحث دئ، چې د نومهالي زمانې اروا پوهانو لکه زیګموند فروید او په تېره بیا کارل ګوستاو یونګ ته یوه د پام وړ بحث دئ او په دې اړه ئې ګڼې لیکنې هم راپاته دي.

د فروید او یونګ له نظره: اسطورې د بشر د ابتدايي طبیعت په تیاره سرچینو او ناخودآګاه ذهن کې رامنځته کېږي. اسطورې او خوبونه د ځانخبري (خودآګاه) ذهن په وسیله د شا ته وهل شویو او ځپل شویو غوښتنو او غریزو تصویرونه دي، چې له کړو وړو شکلونو او څېرو سره بیرته د شعور برخې ته راووزي. د فروید په نظر اسطورې په ټولیز لاشعور کې زېږي، چې د ټولو انسانانو تر منځ ګډ او سره ورته دي، ځکه دا هغه میراث دئ، چې د خورا لرغونیو انسانانو له تجربو څخه رالېږدېدلی دئ او د هغو بنسټي بېلګو حیثیت لري، چې د اوسمهالیو انسانانو له پاره په اسطورو، خوبونو، ننبو، هنرونو او نورو پنځوونو کې ځان راڅرګندوي. (فرهنګ اساطیر کلاسیک: ۱۱).

د اسطورو د رامنځته کېدو یو بل بستر رواني اتکا ده. انسانانو له ډېرې پخوا څخه پر برترو ځواکونو د تکیې کولو تنده درلودلې ده. دغه ځواکونه د وخت په تېرېدلو سره د خیالي او افسانوي روایاتو په ځواک لوی کړل شوي دي او د خارق العاده ځانګړنو خاوند ګڼل شوي دي چې له یوه حقیقي یا تخیلي موجود څخه ئې ورو ورو یو افسانوي او اسطوره یي موجود جوړ کړی دئ.

اسطورې زړېږي، ځیني ئې له منځه ځي او ځای ئې نوي اسطورې نیسي. یو شمېر ئې بیا رغول کېږي او په ساده ژبه نوي کېږي هم. اسطورې له یوې بشري حوزې څخه بلې ته لېږدي او په نوي چاپېریال کې له نویو ځانګړنو سره خپل حضور راڅرګندوي.

عجیبه دا ده چې د تاریخ په اوږدو کې ډېر ځله داسې پېښې شوي دي، چې د تېرو زمانو اسطورې د راوروسته زمانو خلکو ته، په لومړي سر کې د سپېڅلتیا او وروسته بیا د باور وړ نه وې، تر هغه هم بیا راوروسته دغه افسانې یوازې د ساتېرۍ او تفریح له پاره تکرارېدې، خو له دې ټولو سره سره بیا هم نوي اسطورې رامنځته کېدې او په لومړي سر کې به خلکو ته ډېرې مهمې ښکارېدې.

ډېر ځله داسې پېښې شوي دي، چې یوه رښتینې تاریخي پېښه د ځانګړیو عقیدوي، سیاسي، قومي یا فرهنګي دلایلو له مخې د بیابیا تکرار او له هر ځله تکرار سره په هنري سینګار زیاتولو سره په اسطورو بدلې شوې وي. وروسته وروسته د ځینو رښتینو شخصیتونو، پېښو او پدیدو په اړه له مبالغو او غلو ډک بیانونه د دې لامل شوي، چې ماهیت ئې اسطوره یي شي. د بېلګې په توګه؛ که دا ومنو چې د ټرای جګړه یو مهال پېښه شوې وه او یوه تاریخي حادثه وه، خو یونانیانو له دې تاریخي حادثې څخه ډېرې اسطورې راوزېږولې او دا تاریخي پېښه ئې د افسانو په بوږبوکیو کې ورکه کړه. په مهابهارت کې چې د کرن او ارجن د جګړو کوم روایت راغلی همداسې افسانوي شوی تاریخ ئې ګڼلای شو. د ضحاک پاچا په وړاندې د پښې کاوه پاڅون همداسې وګڼئ او هغه روایتونه چې د ځینو پیرانو او مرشدینو په اړه شته هم هغه اسطوره یي روایتونه دي، چې د حقیقي پېښو او اشخاصو په اړه تر موږ

رارسېدلي دي.

له دې څخه ښکاري، چې يو ډېر شمېر اسطورې د تاريخي پېښو او شخصيتونو په اړه د هغوی د پلويانو يا مخالفينو د حب يا بغض له امله رامنځته کېږي د زمانو په اوږدو کې نسل تر نسله رالېږدي او د هغه اعتقادي ارزښت له مخې چې ورسره مل وي په باورونو اوړي.

په دې توګه د اسطورو د رامنځته کېدو پړاوونه او څرنګوالی په لاندې ويش کې ليدلای شو:

تر تاريخ وړاندې زمانو کې چې له طبيعت سره د انسانانو له عقلي، وهمي، تخيلي او اعتقادي اړيکو سره د اسطورو پيوند رانښيي.

د زمانو په اوږدو کې د انسانانو په ګډه ناخودآګاه او رواني پېښو کې د بېلابېلو اسطورو ظهور او تکرار.

او د حقيقي شخصيتونو او پېښو په اړه د راوروسته نسلونو د حب يا بغض په پايله کې د هغوی افسانوي تجسم، چې دغه حقيقي – تاريخي ښکارندې په اسطورو يا اسطوره يي ماهيتونو بدلوي.

په هر ډول غواړم د اسطورو د رامنځته کېدو بحث د (پل ريکور ) په دې جالبه خبره پای ته ورسوم، چې وايي:

"مډرن انسان ځان له اسطورې څخه نه شي خلاصولای او نه ئې هم په هماغه ظاهري شکل منلای شي. اسطوره به تل له موږ سره وي، خو موږ ته ښايي چې له هغې سره انتقادي چلند وکړو". (اسطوره امروز: ۱۳)*

## ج: د اسطورو ډولونه:

د اسطورو د ډولونو پېژندلو له پاره بايد د اسطورې هغه ماهيت په ياد ولرو، چې د هستۍ د تفسير له پاره ئې خپل کړی دئ. په حقيقت کې اسطوره د بېلابېلو اولسونو او قومونو پېژاند دئ چې له هستۍ څخه ئې لري. انسانانو د هري ښکارندې د پيدايښت، بدلون، پرمختيا او له منځه تللو په اړه د ځان پوهولو له پاره – هغه وخت چې پوهې ورسره مرسته نه ده کړې – له اسطورو څخه مرسته غوښتې ده.

د اسطورو د دغسې کاروني پر بنسټ د اسطورو ډلبندي په بېلابېلو بڼو ځان راڅرګندوي.

لومړی اسطورو ته د انسانانو د اړتيا له مخې داسطورو بېلابېل ډولونه پېژنو:

۱– هغه اسطورې چې انسانانو د هستۍ، خلقت او د ژوند د معما او رازونو په اړه رامنځته کړې دي او د هغو په مرسته ئې خپلو پوښتنو ته د ځواب لټولو هڅه کړې ده. دا هغه ډله اسطورې دي، چې انسان، ځمکه او اسمان څنګه او ولې رامنځته شول. ډېرو لرغونيو مصريانو هم فکر کاوه چې انسان له خاوري څخه جوړ شوی دئ. مصري اسطورې څرګندوي چې:

"خدای انسان له پخې خټې څخه جوړ

---

پل ريکور، زندگی دردنيای متن، ترجمه بابک احمدي، نشر مرکز، چاپ اول ۱۳۷۳، تهران ، ۱۰۱ مخ. *

کړ، هغه انساني کالب چې له دې ختې څخه جوړ شوی دئ له خالق سره د مخلوق د پیوند او بیا ئې خاوره له ځمکې سره د پیوند نښې ګڼل کېږي. ځمکه د همدې له پاره د انسانانو دژوند وژواک له پاره ټاکل شوې ده او بیرته به د انسان ورتلل هم همدې ځمکې ته وي".
(فرهنگ اساطیر کلاسیک: ۱۱).

ښايي هنديانو يا لرغونيو يونانيانو او نورو قومونو د خلقت په اړه ښلابېلې اسطورې درلودلې، خو دا تقریباً حتمي ده چې هر قوم د هستۍ د پيل په اړه خپل تصورات د ډول ډول اسطورو په بڼه څرګند کړي دي.

۲- د طبيعي پېښو او ځواکونو په اړه د اسطورو ډلې هم په ښلابېلو قومونو او فکري حوزو کې په جديت سره مطرح وې، چې د اسطورو يوه بله ډله او وېش ئې رامنځته کړی دئ. د لمر، شپې، توپان، باران، کرنې، اوبو، ځمکې، تالندې او .... له پاره د اسطورو ډول ډول وېشونه ګورو. لنډه بېلګه ئې زموږ په نورستانيانو کې شته، دوی د باران او اوبو له پاره د (اينديرا) په نامه رب النوع درلوده او د دې په وړاندې ئې د وچکالې بلا د (وريترا) په لمن پورې تړله دا دواړې يوه د بلې دوښمنې بلل کيدې، خو څرګنده ده چې برى به د اينديرا وو. (روايات اساطيري اريانا: ... ۲۰۳)، (اتر) يا (ازر) د اور له پاره او يمرا له طبيعي پېښو څخه د انسانانو د خلاصون له پاره اسطوره شوي ځواکونه ول.

په يونانيانو کې هم د زئيوس بېلابېل خپلوان يا خپلواک ارباب الانواع د بېلو بېلو طبيعي ځواکونو له پاره ټاکل شوي ول: د بېلګې په توګه؛ زئيوس د اسمان له پاره، ورور ئې پوزوئيدون يا (پوسېئيدون) د سيندونو او سمندرونو له پاره او هادس تر ځمکې لاندې چارو ته ګومارل شوی وو. (فرهنگ اساطير کلاسيک: ۳۱۸).

په هنديانو کې دې ته ورته وېش او په آريايانو کې ئې هم همداسې دروګنئ.

۳ - د يوه قوم د تاريخي او حماسي وياړونو او پهلوانيو له پاره هم ډلې ډلې اسطورې راپنځېدلې دي. په پښتني اساطيرو کې له ښامار سره د مومن خان جګړه، يا له ښامار سره د ګرشاسپ جګړه، د اريايي کيسو نامتو اسطوره رستم، د يوناني اساطيري تاريخ اشيل (اخيلوس)، او ډېسوس او نور...

په هندي اسطورو کې کرن، ارجن او په بابلي اسطورو کې ګېلګمېش هغه بېلګې دي، چې بېلابېلو اولسونو د خپلو پهلوانانو او اتلانو په سترولو کې رامنځته کړې دي.

۴ - د تلپاته ژوند، روغتيا، بخت او برخليک په اړه د اسطورو ويش: بابلي ګېلګمېش غوښتل تلپاته ژوند تر لاسه کړي، ځکه ئې اسمانونو ته خپل اساطيري سفر پيل کړ، بل بابلي اسطوره يې شخصيت مردوک دئ، چې د بخت او برخليک ټاکلو ډېرليکونه ورسره دي او که د چا بخت بېدار وو، نو ښه ژوند به ورته ليکي ... ډېر ځله اسطوره يې اتلان په آب حيات پسې سرګردانه

وي، نور ئې په داسي بوټو پسي چي د هر درد درمان يا د تلپاته ځوانۍ ساتونکي وي، په فولکلوريکو ټوټکو کي اسرار اميزه اوراد، ښاپېرۍ او د بخت ستوري هغه اسطوره يي څېزونه دي چي په دې ډله کي ئې شمېرلای شو.

۵ – په بېلابېلو قومونو کي اعتقادي کيسې بله ډله اسطورې راز پېرولي دي، ان چي د يو شمېر حکيمانو او فيلسوفانو ژوند هم د اسطورو د غبار تر شا افسانوي شوی دئ: د چيني کنفيسيوس، هندي ويشنو، بودا، بلخي زردښت، ماني او نورو په اړه داسي اسطوره يي روايات کم نه دي. د بودا په اړه لولو چي هغه د نيلوفر له ګل څخه راوزېږېده او تر يوې ستري وني لاندي له نيروانا سره، په داسي حال کي چي د سپينو ګلانو باران پرې وريده، يو ځای شو.

د زردښت په اړه روايتونه وايي چي: اهورامزدا د هغه روحي جوهر د باد و باران په مرسته په ګلانو او وښو کي وشينده او کله چي غواوو دغه وانبه وخوړل د هغوی له شيدو سره د زردښت د پلار و مور په وينه کي ګډ شو، اهورا مزدا ئې نور په لمر، ستورو او هغه اور ووېشه چي د هغه د نيا (انې) په کور کي بلېده او په همدې وخت کي د زردښت مور وزېږېده او دغه اور د زردښت ترزېږېدو پورې روښانه وو...

۶– د نړۍ د رامنځته کېدو، فنا کېدو، د بشر د ژغورنې له پاره راتلونکي ځواکونه ټول ځانته ځانته اسطورې لري، چي ډولونه ئې بېخي ډېر دي.

۷ – د اسطورو يو بل ډول وېش له تاريخي پلوه په بېلابېلو بشري حوزو او جغرافيو پوري هم تړلی دئ، د بېلګي په توګه مصري اسطورې، يوناني، رومي، بابلي، اريايي، هندي، چيني، عربي او نوري اسطورې چي په بېلابېلو مدنيتونو پورې اړه لري.

۸ – له ديني پلوه هم د اسطورو وېش شوی دئ. د هلينيانو (يونانيانو) ديني اسطورې، مانوي اسطورې، زردښتي اسطورې، هندويي اسطورې، بودايي اسطورې، د عصر عتيق (اسرائيلي) اسطورې، مسيحي اسطورې، د امريکا او استراليا د لويو وچو د سورپوستکيو (انډينانو)، د افريقايي قبيلو او ځنګلي اديانو اسطورې، د لمر پرستانو اسطورې او داسي نورې.

۹ – عرفاني اسطورې يو شمېر هغه اسطورې دي، چي ښايي په ګڼو يادو شويو اديانو کي په يوه يا بله بڼه سره ورته يا په لږ و ډېر توپير تر سترګو کېږي او هغه د طبيعيت، ځان (خود)، بل (فرد) او معبود په اړه د انسانانو د پېژندني يا عرفان په برخه کي د انسان له شهودي ځواک څخه رازېږېدلي دي، چي ډېري لرغوني اسطورې ئې هم ګڼلای شو. د عرفاني اسطورو يوه ځانګړنه دا ده چي له بېلابېلو اديانو، باورونو، فلسفي او علمي تجربو سره نوي شوي دي، تحول ئې کړی، خو ريښه او وسوسه ئې هماغه د لومړنيو انسانانو له پوښتنو څخه رنګ اخلي.



ليکوال: فرهاد داوري / هلمند

# د سياسي مسايلو تحليل

د سياسي مسايلو تحليل موږ ته پېچلي او ګنډل سوي سياسي موضوعات راپېژني، موږ ته دا توان راکوي چي د سياسي مسايلو په پټو او ژورو مخونو باندي وپوهيږو. د دې لاري موږ کولای سو، چي د سياسي مسايلو په اړه د هغو تحليلونو او پوهنو په اړه معلومات تر لاسه کړو، چي په اسانۍ په ذهن کي نه کښېني، دا موضوعات داسي روښانه کړو، چي پټ او ګونګ حالتونه ئې پاته نه سي او په څرګند ډول ئې ټولي رېښې و څېړو.

زياتره سياسي مسايل دوه اړخونه لري:

**لومړی- ښکاره اړخ:**

دا هغه اړخ دئ چي تقريباً ټولو وګړو ته ښکاره وي او هغه ورباندي پوهېږي، په دې اړخ باندي د پوهيدلو له پاره ژوره پوهه او سياسي منطق نه دي په کار، بلکي دا اړخ د ټولو وګړو له پاره ښکاره وي او هر فرد په پوهېدلای سي.

**دوهم- پټ اړخ:**

دا اړخ د ټولو افرادو له پاره ښکاره نه وي، يانې په عادي پوهې باندي په دې اړخ پوهېدل ناشونی وي، دا اړخ يوازي سياسي تحليل

کوونکي او هغه کسان چې ژوره سياسي پوهه او قوي سياسي منطق ولري، روښانه کولای سي. د زياترو سياسي مسايلو مهم اړخ همدغه پټ اړخ دئ، د دې اړخ د څرګندولو او ښکاره کولو له پاره ژوره سياسي پوهه او قوي سياسي منطق په کار دي.

د پورته يادونو په پام کي نيولو سره، ويلای سو چې د سياسي مسايلو د تحليل ځواک، په حقيقت کي د سياسي مسئلو په ژورو باندي د پوهيدلو ځواک دئ، د دې تکتيکونو او پوهنو په تر لاسه کولو سره، د سياسي جرياناتو ژورو ته د کښته کېدو لاري ښودل کېږي، له همدې امله دا پوهنه په سياست کي اړينه ګڼل کېږي. د دې له پاره چې د سياسي مسايلو د تحليل بحث ته ور داخل سو، نو لومړی بايد په دې اړه تعريفونه او پېژندني وړاندي کړو:

لومړی– تعريفونه:

د دې له پاره چې د سياسي مسايلو په لغوي او اصطلاحي تعريفونو باندي پوه سو، نو اړينه بريښي چې پر (سياسي)، (مسايل) او (تحليل) باندي بېل بېل بحث وکړو، لومړی به سياست او سياسي اصطلاحات وپېژنو:

الف– سياست او سياسي اصطلاحات:

سياست ته په انګريزي ژبه کي (Politics) وايي چې د يوناني ژبي د (Polis) څخه اخيستل سوی دئ او پوليس په يوناني ژبه کي د ښار مانا ورکوي. د لرغونو يونانيانو له آنده سياست د ښار اړونده پوهه ده[1]. په لرغوني يونان کي هر ښار د دولت بڼه درلوده؛ نو ځکه دوی سياست د ښار يا دولت د چارو پوهي ته وايه.

د سياست علم له ډېرو لرغونو زمانو څخه په بېلابېلو ماناوو کارول سوی دئ، يو شمېر پوهان سياست د دولت د چارو پوهي ته وايي، ځيني ئې هغه پوهه ګڼي چې پر بنسټ ئې سياسي قدرت لاسته راځي. ياني د سياسي قدرت د لاسته راوړلو اړونده پوهه ئې ګڼي.

دوهم– مسئله او مسايل:

مسائل د لغت له اړخه د مسئلې جمع ده، چې د موضوع او مشکل يا Problem په ماناوو کارول کېږي. په تحقيق کي عموماً مسئله داسي تعريفېږي "د يوه سيستم يا نظام په داخل کي د موجوده وضعيت او مطلوب وضعيت تر منځ واټن ته مسئله وايي".

دريم– تحليل:

تحليل د لغت له اړخه د حل کولو او تجزيه کولو په مانا دئ، ياني د يوې مسئلې حل کولو او روښانه کولو ته تحليل ويل کېږي. که چيري نوموړې موضوع سياسي وي، د سياسي اصولو او منطق پر بنسټ حلېږي او که چيري اقتصادي، فرهنګي، مذهبي او يا نور اړخونه ولري، بيا د همغو اصولو پر بنسټ حل او روښانه کېږي.

تحليل د يوې مسئلې پر بېلابېلو اړخونو باندي داسي بحث کول دي چې مطلوبه پايله تر لاسه کړه سي، د يوې مسئلې يو اړخ روښانه کول تحليل نه ګڼل کېږي، بلکي ټول اړين اړخونه د ځواکمنو منطقو او دلايلو پر بنسټ روښانه کول او بيا مطلوبه پايله تر لاسه کول،

---

[1]– فرهاد داوري، سياست پوهنه، مومند خپرندويه ټولنه ۱۳۹۱، مخ ۲–۱.

تحلیل ګڼل کېږي. که چیري موږ تحلیل یوازې د یوې مسئلې حل کول وبولو، دا به مو د تحلیل مفهوم او مانا کوچنۍ کړې وي، په تحلیل کې د یوې مسئلې پر حل کولو سربېره نور څه هم اړین دي. د بېلګې په توګه تحلیل کوونکی دمخه تر دې چې د مسئلې پر حل کولو او روښانه کولو کار پیل کړي، لومړی د مسئلې په کشف کولو پیل کوي، مسئله له حقیقي اړخه کشفوي، د مسئلې موضوع، اړخونه، لوبغاړي، د پیل او پای انګیزې او نور څه تر لاسه کوي. تحلیل کوونکی هڅه کوي چې هغه حقایق او رازونه چې د خلکو د سترګو څخه پټ وي، هغه کشف کړي او خلکو ته یې روښانه کړي، په دې ډول تحلیل کې تحلیل کوونکی زیاتره کار د حقایقو او رازونو پر کشفولو کوي او د مخه تر دې چې مسئله حل کړي، د نوموړې مسئلې په اړه رازونه او حقایق وایي.

یا هم شونې ده چې تحلیل کوونکی د یوې کشف سوې مسئلې سره مخ سي او د نوموړې مسئلې د روښانه کولو او حل کولو له پاره له خپلې پوهې او تخصص څخه ګټه واخلي، تر څو د عامو خلکو په وړاندې مسئله حل کړي او مطلوبه پایله تر لاسه کړي. په ټولیز ډول د یوې مسئلې (تحلیل کول) څلور اړخونه لري:

الف: د یوې مسئلې یا پېچلې پېښې په اړه د حقایقو او رازونو کشفول؛

ب: د نوموړې مسئلې یا پېښې په جزئیاتو پوهیدل او بیا مخاطبینو ته ساده کول؛

ج: د نوموړې مسئلې یا پېښې عوامل، عناصر، اړخونه، انګیزې او ټول هغه وسایل چې د نوموړې مسئلې په رامنځته کېدو، تر سره کېدو او پای ته رسېدو کې یې رول درلودی.

د: د نوموړې مسئلې په اړه عمومي لیدلوری او پېژندنه مخاطبینو ته لېږدول.

**د سیاسي مسایلو د تحلیل تعریف:**

هر تحلیل د تحلیل کوونکي د پوهې، لیدلوري او معلوماتو پر بنسټ تر سره کېږي. که چیري د تحلیل کوونکي د پوهې کچه لوړه وي، د مسئلې په اړه ژور معلومات ولري او لرلید او ژورلید یې زیات وي، بیا نو شونې ده چې تحلیل هم قوي او حقیقت ته نږدې وي. له همدې امله تحلیل کوونکی باید د تحلیل د موضوع په ټاکلو کې دقت وکړي او هغه موضوعات چې د ده تر توان لاندې وي، تحلیل کړي. تحلیلونه بېلابېل ډولونه لري لکه سیاسي، اقتصادي، فرهنګي، ژبني، مذهبي، ټولنیز...

اوس موږ د خپل بحث په جریان کې باید دا روښانه کړو چې د تحلیل د ډولونو څخه یوازې سیاسي تحلیل څه مانا لري؟ ځکه موږ د سیاسي تحلیل پر محتوا او پېژندنې باندې بحث کوو.

سیاسي تحلیل د تحلیل له مهمو ډولونو څخه ګڼل کېږي چې په سیاسي پېښو پوري اړوند موضوعات او مسئلې تحلیلوي، په سیاسي تحلیل کې تحلیل کوونکی د سیاسي اصولو او سیاسي منطق پر بنسټ د مسئلې

اړخونه روښانه کوي. د سیاسي تحلیل موخه د هغو پوښتنو ځوابونه په ګوته کول چې ورځنۍ سیاسي پېښې ئې رامنځته کوي، یا هم هغه سیاسي پېښې چې په پخوا وختونو کې رامنځته سوي وي او اغېز ئې پر ورځني حالت باندې محسوسیږي، د هغو په اړه اړوند پوښتنو ته ځواب پیداکول دي. په پای کې ویلای سو چې د سیاسي تحلیل څخه هدف دا دئ چې د هغو سیاسي مسئلو او موضوعاتو په اړه حقایق او رازونه کشف کړي چې د ورځني ژوند سره تړاو ولري، دا مسئلې که په روان سیاست کې شاملې وي او یا هم په تېر وخت کې رامنځته سوي وي.

**د سیاسي تحلیل پړاوونه:**

د سیاسي تحلیل له پیل څخه تر پایه پوري ځیني پړاوونه او اصول شتون لري چې هغه باید په پام کې ونیول سي، دا پړاوونه زموږ سره د سیاسي تحلیل په سر ته رسېدو کې مرسته کوي، په ټولیز ډول لاندې پړاوونه د پوهانو له خوا وړاندې سوي دي:

## ۱. د موضوع ټاکنه:

په سیاسي تحلیل کې لومړی ګام د داسې موضوع ټاکنه ده چې د تحلیل وړ وي او تحلیل کوونکی وکولای سي چې نوموړې موضوع د خپلې پوهې، تخصص او هغو حقایقو پر بنسټ وسپړې چې د ده په لاس کې دي. د موضوع ټاکنه باید په پوره پاملرنې سره وسي، که موضوع ګونګه وي او یا هم د مسلک او تخصص څخه دباندې وي، بیا نو د هغې په اړه سم تحلیل ناشونی دئ.

## ۲. د معلوماتو راټولونه:

د تحلیل د موضوع تر ټاکنې وروسته د هغې په اړه د معلوماتو او اطلاعاتو راټولول اړین دي. دا ځرګنده خبره ده چې پوخ او سم تحلیل یوازې د پخو موادو او کره معلوماتو پر بنسټ تر سره کېدای سي، خام مواد د پوخ او سم تحلیل له پاره په کار نه راځي. له همدې امله تر تحلیل دمخه باید د معلوماتو په راټولونه کې هڅه وکړه سي. اوس پوښتنه پیدا کېږي چې موږ څنګه د معلوماتو په کره والي او پوخوالي باندې پوهېدلای سو؟ د دې پوښتنې په ځواب کې باید ووایو چې لومړی باید د معلوماتو سرچینه وکتل سي، که د نوموړو معلوماتو د خپرېدو سرچینه د اعتبار وړ وه او په رسمي یا نا رسمي توګه نشر سوې وه، تر ډېره بریده په تحلیل کې تکیه ورباندې کېدای سي. دوهم د معلوماتو او اطلاعاتو لیکوال، ترتیب کوونکی او یا څېړونکی، باید وکتل سي، که د باوري لیکوال او څېړونکي له خوا نشر سوي وه، هغه هم د ارزښت وړ مواد ګڼل کېدای سي او بل مهم ټکی دا دئ چې که په نوموړو معلوماتو کې د قوي دلایلو پر مټ مسئله روښانه سوې وه او د تحلیل له پاره ئې دلایل منطقي او ځواکمن وه، کېدای سي چې په تحلیل کې تکیه پر وسي.

## ۳. د اړیکو پیداکول:

له هغو سرچینو سره پټې یا ښکاره اړیکې پیدا کول چې د مسئلې سره اړیکه ولري، تر څو د نوموړې مسئلې په اړه حقایق او رازونه کشف کړل سي. تحلیل کوونکی باید

هڅه وکړي چې هغو معلوماتو او موادو ته لاسرسی پیدا کړي چې د عادي افرادو لاسرسی ورته ستونزمن یا هم ناشونی وي.

څنګه چې موږ مخکې هم وویل تحلیل یوازې د مسئلې حل کول نه دي، بلکې د مسئلې په اړه د حقایقو او رازونو کشفول هم دي، له همدې امله په زیاترو تحلیلونو کې رازونه او حقایق ویل کېږي. کله نا کله داسې هم کېږي چې تحلیل کوونکي ته ځینې غلط معلومات د حقایقو او رازونو په توګه ویل کېږي، په دې وخت کې تحلیل کوونکی باید دومره معلومات او تحلیل ولري چې د نوموړو معلوماتو کره والی او غلط والی معلوم کړي، که تحلیل کوونکی په تحلیل کې غلط معلومات د رازونو په توګه وکاروي، بیا نو تحلیل هم غلطیږي او اصلي لاره ورکېږي.

## ۴. د مسئلې تجزیه کول:

د مسئلې جزئیات، اصلي او فرعي لوبغاړي باید وپېژندل سي، همدارنګه د لوبغاړو موخې او په مسئله کې کارول سوي وسایل هم باید څرګند سي، وروسته په جزئیاتو باندې مسئله تجزیه او تحلیل کړه سي.

په سیاسي مسایلو کې کله ناکله زیات لوبغاړي ښکېل وي، ځینې ئې د اصلي لوبغاړو په توګه او ځینې بیا د فرعي لوبغاړو په توګه دنده لري، د تحلیل پر مهال ټول لوبغاړي باید وپېژندل سي او د هر ډول لوبغاړي مسؤلیت او دندې هم په ګوته سي. همدارنګه په نوموړې مسئله کې کارول سوي تکتیکونه، وسایل او لاري چاري هم روښانه کړل سي. کله چې تحلیل پر جزئیاتو باندې تر سره کېږي، باید ټول اړخونه ئې په جزوي او ګلي ډول روښانه وي.

## ۵. د فرصتونو او تهدیدونو پېژندنه:

د یوې مسئلې د تحلیل پر مهال باید د نوموړې مسئلې د پیل، جریان او پای ته رسېدو پر مهال فرصتونه او تهدیدونه روښانه کړل سي. دا فرصتونه او تهدیدونه باید یا د ژورې مطالعې پر بنسټ او یا هم د کشف سوو حقایقو پر بنسټ روښانه کړل سي.

## ٦. د بنسټیزو پوښتنو له پاره د ځوابونو لټول:

د هرې سیاسي موضوع د تحلیل له پاره اړینه بریښي چې لومړی د هغې موضوع اړوند بنسټیزې پوښتنې مطرح کړل سي او بیا د احتمالاتو او فرضیو په چوکاټ کې د نوموړو پوښتنو له پاره مناسب ځوابونه په ګوته کړل سي. دا ځوابونه د احتمالاتو او فرضیو په شکل د تحلیل کوونکي په مغز کې راګرځي او د تحلیل د بنسټونو د موندنو له پاره یوه ګلي طرحه وړاندې کوي او بیا ئې تر مخاطبانو پورې رسوي.

## ۷. د استدلال له پاره سمه تګلاره ټاکل:

تحلیل کوونکی د تحلیل پر مهال د یوې مسئلې د رد یا تائید له پاره د استدلال داسې تګلاره ټاکي، چې پر منطق او سیاسي دلایلو

ولاړه وي او په پای کې یو مناسب تحلیل وړاندې کړل سي. تحلیل کوونکی د سیاسي موضوع د تحلیل پر مهال هڅه کوي چې هغه عوامل او دلایل ولټوي چې د نوموړي موضوع تحلیل ورڅخه په لاس راځي، په دې برخه کې تحلیل کوونکی زیاتره ټینګار پر عواملو او دلایلو باندې کوي. هر څومره چې د یوې موضوع دلایل او عوامل په سمه توګه په ګوته کړل سي، په همغه اندازه تحلیل دقیق او پر ځای ګڼل کېږي، که چیرې د رد یا تائید له پاره نوموړي دلایل بسنه وکړي، تحلیل ورڅخه په لاس راځي، خو که چیرې د رد یا تائید له پاره بسنه و نه کړي، بیا نو شونې ده چې تحلیل کوونکی دقیق اسناد، آمار او یا نوري معتبري سرچیني ولټوي، تر څو دقیق تحلیل ورڅخه په لاس راوړي.

دا جوته خبره ده چې هره مسئله د یو شمېر اصلي او فرعي سیاسي لوبغاړو له خوا پیلېږي او بیا پای ته رسېږي، د تحلیل پر مهال د نوموړو لوبغاړو یادونه، د دوی ګټې او د دوی په مخکې پراته خنډونه هم یادېږي، تر څو د تحلیل له پاره د موضوع ژورو ته ننوزي.

## ۸. د تحلیل له پاره د نقشې ټاکل:

تحلیل کوونکی د خپل تحلیل له پاره داسې نقشه او لاره انځوروي، چې تحلیل کوونکی وغواړي چې مخاطب همغه ځای ته ورسېږي، یانې تحلیل کوونکی د خپل تحلیل پر بنسټ مخاطب یوې پایلې ته رسوي. هر تحلیل کوونکی د خپل تحلیل پر مهال په دې پوهېږي، چې زما د تحلیل په پایله کې مخاطبینو ته څه پیغام رسېږي، زه له کوم ځایه موضوع پیلوم او په کوم ټکي ئې پای ته رسوم، د دې ټولو اړخونو نقشه یوازې د تحلیل کوونکي سره ده، که چیرې دا نقشه دقیقه او پر ځای وي، بیا شونې ده چې مناسبه او پر ځای پایله ورڅخه واخیستل سي.

## ۹. د راتلونکو تحولاتو او موضوعاتو په پام کې نیول:

که څه هم د سیاست د علم یوه ستونزه دا ده چې د راتلونکي په اړه دقیق اټکل نه سي کولای، خو بیا هم شونې ده چې تحلیل کوونکی د خپل تحلیل پر مهال راتلونکي سناریوګاني او پېښېدونکي حالات مخکې له مخکې اټکل کړي.

## ۱۰. د پایلې چمتو کول:

د سیاسي تحلیل په پایله کې باید د هغې موضوع په اړه چې بحث ورباندې وسو، پایله او جمعبندي وړاندې سي، د نوموړي سیاسي تحلیل پایله باید په لنډو ټکو کې روښانه سي او تر مخاطبینو پورې خپل د تحلیل عمومیات په څرګندو ټکو کې ورسېږي.

## ۱۱. سیاسي هدایت:

د سیاسي تحلیل په پایله کې تحلیل کوونکی هڅه کوي چې مخاطبین پر یوې مناسبې سیاسي لارې هدایت کړي، د دوی له پاره داسې سیاسي لاره په ګوته کړي چې د ملي ګټو او موخو سره همږغې وي، د دې لارې ټاکل او بیا د مخاطبینو له پاره د منلو دلایل

وړاندي کول د تحلیل کوونکي په لیدلوري پوري اړه لري، لکه څرنګه چي هر تحلیل کوونکی ځانته ځانګړی لیدلوری لري، له همدې امله هڅه کوي چي د خپل لیدلوري سره سم مخاطبین پر یوه سیاسي لاره هدایت کړي.

**د سیاسي تحلیل ګټې:**

د سیاسي تحلیل په پایله کي د موضوعاتو ګونګ او پېچلی شکل په اسانه او شنلي شکل باندي اوړي، په پایله کي داسي واقعیتونه راپورته کېږي چي د یوې موضوع له ګونګوالي څخه پرده پورته کوي. د سیاسي تحلیل ګټې زیاتي دي، خو په ټولیز ډول ئې دلته یو څو د نمونې په توګه یادوو:

## ۱. شفافیت:

سیاسي تحلیل زیاتره وخت د یوې موضوع د حل کولو او روښانه کولو لپاره کېږي، ډېر کم وخت د رازونو د افشا له پاره وي، کله چي د یوې موضوع پر مختلفو اړخونو باندي بحث کېږي، هغه روښانه کېږي او بیا حل کېږي، مخاطبینو ته اسانه لار په لاس ورکوي، د موضوع مجهولیت له منځه وړي او په پای کي موضوع شفافه او روښانه کوي. هره سیاسي موضوع په خپل ځان کي یو شمېر سیاسي پېچومي لري، سیاسي ګونګوالی لري او د بېلابېلو اړخونو روښانتیا ته اړتیا لري، دا روښانتیا یوازي هغه کسان کولای سي چي په دې برخه کي پوهه ولري او د تحلیل په اصولو وپوهېږي، نو په پای کي ویلای سو چي د سیاسي تحلیل یوه ګټه د موضوع شفافیت او روښانتیا ده.

## ۲. د راتلونکي له پاره اټکل:

که څه هم په سیاسي مسایلو کي د راتلونکي په اړه دقیق اټکل ناشونی دئ، خو کله ناکله د ځینو عواملو او دلایلو پر بنسټ د راتلونکي له پاره ګڼلي انځور وړاندي کېدای سي، ځیني سیاسي موضوعات د یوې کړۍ په شکل وي، کله چي ئې یوه کړۍ بشپړه سي، تحلیل کوونکی کولای سي چي د راتلونکي کړۍ له پاره ئې ځیني اټکلونه وړاندي کړي. که څه هم دا ډول اټکلونه زیاتره وخت رښتني نه وي، خو ځیني وختونه یو څو سلنه پایله ورکوي. که تحلیل دقیق او پر اصولو ولاړ وي، کېدای سي چي د مخاطبینو د راتلونکي له پاره څه نا څه د اټکل زمینه برابره کړي.

## ۳. د تصمیم نیوني قدرت:

د سیاسي تحلیل په پایله کي د یوې سیاسي موضوع په اړه ټول اړخونه روښانه کېږي، کله چي موضوع روښانه سوه، د موضوع لوبغاړي، د تصمیم نیوني سرچیني او ټول واکمن اړخونه ئې په ګوته کېږي، په دې سره د مخاطبینو له پاره د فکر کولو او تصمیم نیولو له پاره هم زمینه برابرېږي، یاني له یوې خوا د نوموړي موضوع واکمن لوبغاړي په ګوته کېږي او له بلې خوا د مخاطبینو له پاره د خپلو پرېکړو او دریځونو حدود په ګوته

کېدای سي.

## ۴. د سیاسي دلایلو وړاندي کول:

د تحلیل په پایله کي د یوې موضوع د تائید یا رد له پاره مناسب سیاسي دلایل وړاندي کېږي، دا دلایل زیاتره وخت پر سیاسي منطق ولاړ وي، د مخاطبینو له پاره ئې ګټه همدا ده چي د نوموړي موضوع د رد یا تائید لاري چاري ورته په ګوته کېږي، دا لاري چاري د سیاسي منطق او اصولو پر بنسټ ولاړي وي. دا څرګنده خبره ده چي د سیاسي تحلیل یوه مانا دا ده چي د پېښې د ظاهري کړنو څخه د هغې رېښو ته ځان رسول سیاسي تحلیل دئ، کله چي د ظاهري اعمالو او تاثیراتو پر بنسټ د یوې موضوع ژورو او رېښو ته ځان ورسول سي، دا پروسه د دلایلو او منطق پر بنسټ تر سره کېږي، دا دلایل او منطق د موضوع ټول اړخونه روښانه کوي او په پایله کي نهایي حل را باسي.

## ۵. سیاسي لارښودنه:

د موضوع تر تحلیل وروسته تحلیل کوونکی د راتلونکي له پاره مخاطبینو ته لاري ښیي، دا لاري د ښلابېلو معیارونو پر بنسټ ټاکل کېږي، خو د تحلیل کوونکي لیدلوری، لرلید او ژورلید زیات اغېز لري، هر تحلیل کوونکی د خپلي فکري کړۍ او تګلاري پر بنسټ مخاطبینو ته سیاسي لارښودنه کوي او پر سیاسي مسیر ئې برابروي.

## ٦. په سیاسي بحرانونو کي د تصمیم نیوني ځواک:

تحلیل کوونکی هڅه کوي چي موضوع داسي روښانه کړي چي له یوې خوا د تصمیم نیوني سرچیني په ګوته کړي او له بلي خوا مخاطبینو ته د تصمیم نیوني دریځ وښیي، دا حالت په عادي او نارمل وخت کي دومره د پام وړ نه دئ، خو په سیاسي بحرانونو (انقلاب، کودتا، بېړني حالت...) کي وګړي هڅه کوي چي خپل دریځ وښیي، دوی زیاتره وخت په دې نه پوهېږي چي پر کوم لوري حرکت وکړي، د دوی د لوریو د معلوملو له پاره دوی هڅه کوي چي د تحلیل کوونکو دلایل او سیاسي لارښودني وګوري، نو سیاسي تحلیل کوونکی کولای سي چي د دقیق او منطقي تحلیل پر بنسټ د تصمیم نیوني ځواګونه په ګوته کړي.

## ۷. د ناسمو تحلیلونو زیان:

سم تحلیل د سمي لاري ښودنه کوي، د وګړو له پاره سمه سیاسي لاره ټاکي، خو که چیري تحلیل ناسم وي، دا ناسم والی که په قصدي ډول وي او یا هم د تېروتني په شکل وي، زیات زیانونه لري. د سم تحلیل پر بنسټ کېدای سي چي د ښلابېلو ناسمو تحلیلونو زیانونه راکم کړل سي او د هغوی له زیانونو څخه ټولنه، خلک او سیاسي بهیر وساتل سي. له همدې امله د سم تحلیل غوره ګټه د نورو ناسمو تحلیلونو د زیانونو مخنیوی دئ.



استاد عبدالباري جهاني/امریکا

# سیداحمد بریلوي او هندوستاني مجاهدین

څلرمه برخه

**د سید احمد بریلوي او هندوستاني مجاهدینو عقاید:**

د سیداحمد بریلوي د اجتماعي او مذهبي اصلاحاتو تحریک بنایي نه په سیمه او نه په اسلامي نړۍ کي لومړنی او وروستنی تحریک وي. سیداحمد بریلوي د اسلام په دین کي د هندو مذهب او عنعناتو د نفوذ، ټگمارو او گمراه کوونکو تش په نامه پیرانو او ټگمارو مرشدینو او انگریزي استعمار پر ضد، چي په هند کي ئې د مسلمانانو څخه قدرت غصب کړی وو، په یوه ځل مبارزه پیل کړه. یوازي په تبلیغاتو او د کتابونو او رسالو په خپرولو بسیا نه سو بلکي لومړی ئې د سیکهانو څخه د مسلمانانو د ښارونو او سیمو د ژغورلو له پاره وسلو ته لاس واچاوه او وروسته ئې پیروانو د فرنگیانو پر ضد جهاد او مقاومت ته دوام ورکړ. د هغه دښمنانو سمدستي د هغه تحریک ته د وهابي نوم ورکړ، او عوام الناس، چي حتی اوس هم د وهابي په اصلي مفهوم او معنی نه پوهېږي، د خپلو پیرانو او ملایانو په پیروي، چي د سید احمد بریلوي د تحریک له امله ئې گټي په خطر کي لوېدلي وې، هغوی ته وهابیان وویل. د اکثر عوام الناس له پاره وهابي د کافر معادل دئ او کله چي د سوات د اخوند صاحب په څېر یوه مشهور او منلي پیر او د پېښور د عالمانو د شورا په څېر ملایانو سیداحمد بریلوي وهابي وباله نو د خلکو له پاره ئې فیصلې د اعتبار او منلو وړ وې او لا تر څنگ ئې انگریزي تبلیغاتو هم هغوی په دغه نامه تورن او مشهور کړل. د انگرېزانو په زیاتره کتابونو کي دا خبره راغلې ده چي سیداحمد بریلوي حج ته د خپلو پیروانو د سفر په ترڅ

کي د وهابي عقایدو تر تاثیر لاندي راغی او هند ته د بیرته ستنیدلو څخه وروسته ئې د دغو عقایدو په تبلیغ پیل وکړ. په داسي حال کي چي لومړی خو د صراط مستقیم په نوم د سید احمد بریلوي د خطبو مجموعه، چي د هغه او د هغه د تحریک د افکارو او عقایدو تر ټولو څرگند ښکارندوی دئ، حج ته د هغه له سفر څخه مخکي، د هغه ملگري مولوی شاه اسمعیل ترتیب کړې وه او مولوي شاه عبدالحي هغه خطبې په عربي ترجمه کړي او عربي ترجمه ئې په مکه معظمه او مدینه شریفه کي اسلامي علماوو ته ښودلې او د هغوی له خوا تقدیر سوې وه. له بلي خوا صراط مستقیم هم د موضوعاتو او هم د عقایدو له مخي د محمد بن عبدالوهاب د عقایدو سره، چي مخالفین ئې وهابي عقاید بولي، توپیر لري. دغه راز دا داوړه تحریکونه، که څه هم چي د خرافات پرستیو او، د عبادت تر سرحده، د پیرانو او زیارتونو په برخه کي د ورته ستونزو سره مخامخ ول مگر محمد بن عبدالوهاب او د هغه ملگري، چي ځانونه مُوحّدین بولي، زیاتره د زیارتونو، نذرونو او خرافي عقایدو له ستونزي سره، چي د دوی په عقیده ئې ډېر مسلمانان د شرک سرحد ته رسولي ول مخامخ ول، په داسي حال کي چي سید احمد د اسلام په دین کي د هندو عقایدو د نفوذ، خرافات پرستیو او دغه راز د پردیو فرنگیانو له خوا د هند د خاوري د لاندي کولو او استثمارولو د ستونزي سره مخامخ وو او د خپل پیر او مرشد شاه عبدالعزیز په څېر ئې هند دارالحرب وباله او دارالاسلام ته ئې مهاجرت کول او له فرنگیانو سره جهاد واجب اعلان کړ.

دغه راز سید احمد بریلوي او د هغه ملگري په داسي وخت کي سعودي عربستان ته ورسېدل چي د عربستان وهابیان پخپله د ترکانو تر تعقیب لاندي ول او د هغوی ټول فعالیت د نجد په سیمه پوري محدود وو. په داسي حال کي به د عربستان د وهابیانو له پاره ډېره گرانه وه چي د سیداحمد او د هغه له ملگرو سره داسي تماسونه ټینگ کړي چي هغوی دي خپلي لاري ته را وبولي. Wahabi Movement p ۲۱

محمد بن عبدالوهاب د عربستان د نجد د ولایت د العُیینه په ښار کي، په یوه عالمه او مذهبي کورنۍ کي، دنیا ته راغی. له لومړۍ ځوانۍ څخه په خلکو کي د خرافي عقایدو رواج ته متوجه سو او د توحید له پاره ئې تبلیغ پیل کړ. هغه د العُیینه د ښار له واکمن ابن المُعمر سره اړیکي ټینگ کړل او د هغه په مرسته ئې لومړی هغه وني له بیخه وایستلې چي خلکو به نذرونه ورته راوړل او تعویذونه او د ټوکرانو رنگارنگ ټوټې به ئې پوري ځړولې او مرادونه به ئې ورڅخه غوښتل. محمد بن عبدالوهاب دا د شرک عمل وباله او خلکو ته ئې د دغه راز اعمالو پر ضد تبلیغ پیل کړ، د هغه ورسره ملگرو او پیروانو څو وني له بیخه وایستلې او هغه لویه ونه چي تر ټولو معتبره وه ده پخپله له ریښو وایستله. په وروسته کي د زید بن خطاب قبر ته، چي د ښار ډېر زیات خلک به ورته راتلل، متوجه سو. هغه پوهېدی چي د اسلام د خلیفه عمر بن خطاب د ورور د

قبر ورانول څه اسانه کار نه دئ او د خلکو له پراخ عکس العمل سره به مخامخ سم نو ئې د العُیینه د ښار د واکمن ابن المعُمر څخه، چي د ده طرفدار وو، مرسته وغوښته. هغه د زیارت د خرابولو له پاره شپږ سوه عسکر ورکړل او محمد بن عبدالوهاب خلکو ته وښودل چي د خپل تصمیم په عملي کولو کي جدي دئ. خلکو له دونه زیاتي وسله والي قوې سره د مقاومت توان نه درلود او محمد بن عبدالوهاب د زید بن خطاب قبر وران کړ.

تر دې وروسته چي ئې هر ځای دغه ډول زیارت لیدی هغه ئې د شرک عمل باله او د خپلو طرفدارو واکمنانو په مرسته ئې تباه کاوه. Wahabi Islam p ۲۵

موږ د سید احمد بریلوي او د هغه د تحریک په جریان کي، چي زیات و کم اتیا کاله ئې دوام وکړ د مقدسو ونو، ځایونو، خلوتونو او یا زیارتونو د ورانولو او یا د ورانولو له پاره د تبلیغ کولو یو مثال هم نه لرو. که څه هم چي هم پخپله سید احمد بریلوي او هم د هغه ملګری مولوي شاه اسمعیل د زیارتونو او پر قبرونو باندي د مسجدونو د جوړولو سره سخت مخالف ول او هغه ئې د اسلام د دین له احکامو سره مغایر بلل او ویل به ئې چي دغه راز مسجدونه او زیارتونه جوړول د احادیثو په حکم شرک ته رسېږي خو څرنګه چي د کوم زیارت یا مقدس ځای د نړولو له پاره ئې نه په بنګال، نه په شمالي هندوستان او نه په پښتونخوا کي عملي ګام پورته کړی دئ نو موږ ویلای سو چي دوی او وهابیانو هم په نظر او هم په عمل کي جدي توپیر درلود. څکه چي وهابي تحریک د زیارتونو په نړولو پیل سوی او د سید احمد بریلوي تحریک په خپل ټول اتیا کلن عمر کي په دغه اړه یو اقدام هم نه دئ کړی.

دغه راز سید احمد بریلوي زیارتونو ته د خاصو یا پاک باطنو خلکو تلل ګټور کار بولي خو وایي چي که عام اولس او مومنان زیارتونو ته ولاړ سي نو له حده وتلی تاوان ورته رسېږي. نو عوام باید زیارتونو ته له تللو څخه پرهېز وکړي ځکه چي هغوی له قبرونو څخه مرسته غواړي او دا عمل ئې شرک ته رسوي (صراط مستقیم: ۱۰۲مخ).

د زیارتونو او په نتیجه کي د زیارتونو د ساتونکو او د سید احمد بریلوي په اصطلاح صوفي شعار مشرکینو پر ضد مبارزې د هغه په مقابل کي ټول هغه کسان را وپارول چي د زیارتونو څخه ئې ګټي تر لاسه کولې او په قرنونو ئې د پښتنو په بیسوادو اولسونو کي د سید او میا په نوم امتیازات اخیستي، او اوس ئې هم اخیستل. پښتنو، چي زیارتونو ته ئې تر هر څه زیاته او ټینګه عقیده درلوده، کال دوولس میاشتي زیارتونو ته نذرونه او نغدي پیسې وروړلې او د دې پیسو او نذرونو اخیستل د هغو کسانو حق وو چي له زیارت سره ئې د خپلوۍ تړاو درلود او د متولي په نوم ئې د زیارت ساتنه کوله. په پښتنو په تیره بیا سوات کي خلکو د پیرانو او ولیانو په نوم بېحده زیات امتیازات اخیستل. په سوات کي، تر نونسمي پېړۍ پوري، د پیرانو مځکي، چي سیري ورته ویل کیدلې، د بیا وېشل کېدلو له سیستم څخه معافي وې. پیران او د هغوی

اولادونه هم د حاصل خيزو مځکو د درلودلو له امله شتمن سوي ول او هم چي به ئې د لويو او مهمو لانجو په حلولو کي برخه واخيستله نو ډېري پراخي مځکي به ئې د تحفې په شکل تر لاسه کولې. پراخو مځکو او جايدادونو له پيرانو څخه خانان جوړ کړي او د مالي توان په نتيجه کي ئې سياسي قدرت ورځ تر بلي زياتيدی. Political Leadership p ۹۳

په داسي حالاتو کي چي پښتنو خپل هر زيارت ته د يوه مقدس حريم په سترګه کتل د سيد احمد بريلوي له پاره د زيارتونو د ورانولو په باره کي د نيت کول هم ګران کار وو، او د عملي اقدام خو ئې ښځي فکر نه سوای کولای.

د سعودي عربستان فقيد مفتي اعظم د شرک د ډولونو د شمېرلو په ترځ کي ليکي چي هر هغه څوک چي د الله تعالى او د خپل ځان تر منځ واسطې قايموي او له هغوی څخه مرسته او شفاعت غواړي او پر هغوی باندي توکل کوي، هغوی ټول کفار دي.

دغه راز ټول هغه کسان چي مشرکينو ته کفار نه وايي او د هغوی په کفر کي شک لري او د هغوی مذهب صحيح بولي، ټول کافران دي. (العقيدة الصحيحة: ۲۶)

سيد احمد بريلوي او د هغه پيروان، که څه هم چي د قبرونو څخه د مرستو او شفاعت غوښتلو په برخه کي، د محمد بن عبدالوهاب په څير، د قرآني اياتونو په استناد، وايي چي دا د شرک اعمال دي، خو د زيارتونو په برخه کي دومره سخت حکم نه کوي او حتی مولوي شاه اسمعيل خو د يوه حديث په استناد وايي چي حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم د خپل ژوند په وروستيو شپو ورځو کي ناستو کسانو ته وويل چي ما تاسي د قبرونو د زيارت کولو څخه منع کړي واست، مګر اوس در ته وايم چي د قبرونو زيارت کول ستاسي توجه له دنيايي ژوند څخه را ګرځوي او آخرت مو در په زړه کوي. Taqwiatul Iman p ۲۴۷

دغه راز څرنګه چي سيد احمد بريلوي په هند کي ژوند کاوه او د ټولني ډېر لوی او تام اکثريت هندوان ول نو هغه د اسلام په دين کي د هندو عقايدو او عنعناتو د نفوذ پر ضد سخته او ښکاره مبارزه کوله خو له هندوييزم سره ئې کرکه او مخالفت نه ښود. سيداحمد له هندوانو سره نژدې دوستانه اړيکي درلودل، د هندوانو دعوتونه او سوغاتونه ئې منل. نه يوازي ئې د خپل تحريک په لومړۍ مرحله کي بلکي د تحريک په دوهمه مرحله کي چي عملاً د سيکهانو پر ضد جنګېدی، د هندوانو مالي مرستي منلې. شاه اسمعيل خو د هر مذهب په مقابل کي د حوصلې او زغم غوښتنه کوله. دی وايي د هر مذهب په پيروانو کي ډېر زيات شمير هوښيار خلک سته او په دې کي هغه کسان چي باطني عمق ته رسېدلي دي د خاصي يادوني وړ دي. په دې کي هم مسيحيان، هم يهودي صوفيان، هم فارسيان، هم نيوافلاطوني فيلسوفان او هم هندو جوګيان شامل دي... دوی د دغه باطني عمق منابع دي خو وروسته بيا ګمراه کوونکي مفکورې د هغوی له مذهب سره ګډې سوي او انحرافات ئې را پيدا کړي او پر مذهب ئې حاکم کړي دي. Sayyid Ahmad p ۱۲۷

له هندوانو څخه مرستي اخيستل او د هغوی دعوتونه منل او بالاخره لا د هندوانو او مشرکانو مشران هوښيار او پر حقه بلل، له هره پلوه د محمد بن عبد الوهاب له عقايدو سره اختلاف لري.

د سيد احمد بريلوي د صوفي اصلاحاتو تحريک د خرافاتو او غير اسلامي عقايدو څخه د اسلام د دين د تصفيه کولو له پاره پيل سو. د سيد احمد بريلوي د تحريک د طرفدارانو په هيڅ کتاب کي موږ د کوم بل مذهب د غندني څرک نه وينو. د ده اصلي هدف په اسلام کي د هندو عقايدو د نفوذ پر ضد مبارزه وه. مګر د دې نفوذ پړه ئې پر هندوانو نه اچوله بلکي مسلمانان ئې ملامت بلل. د سيد احمد دغه زغم ډېر هندوان دې ته راوستل چي د اسلام دين قبول کړي او د هغه پر لاس بيعت وکړي. هندوان د هغه رښتيني پرهيزګاری، ښو اخلاقو او علمي شخصيت د اسلام د دين منلو ته تشويقول Ibid p ۱۲۸.

سيد احمد بريلوي د تحريک په لومړي سر کي د اسلام په دين کي د هندو عقايدو او رسومو د نفوذ پر ضد تبليغ پيل کړ او د هغه دغه راز تبليغاتو او په وروسته کي د سيکهانو پر ضد د هغه جګړو هندوان د هغه عقايدو او تحريک ته بدبينه کول او چنداني اعتماد ئې نه په کاوه. خو کله چي د سيکهانو دولت ړنګ سو او د سيد احمد پيروانو د انګريزانو په مقابل کي د پخوا په څېر خپلو حملو او مبارزو ته دوام ورکړ نو هندوانو هم زړونه ورنژدې کړل او حتی همکاري ئې ورسر پيل کړه. داسي شواهد او اسناد موجود دي چي ډېر هندوان د هندوستاني مجاهدينو د ملاتړ په ګناه بنديان سوی دي. سرې ويلای سي چي د هندوستاني مجاهدينو تحريک د انګرېزي استعمار د تباه کولو او په هند کي د اسلامی دولت د ټينګولو له پاره داسي مبارزه وکړه چي هيڅ وخت کي ئې د هندوانو سره ټکر و نه کړ History and Culture p ۹۰۰.

سيد احمد بريلوي له واده کولو څخه د کونډې منع کول هم په اسلام کي د هندو مذهب د رسمونو او رواجونو نفوذ او اثر بولي. دی وايی دا بد رسم په هندوستان کي د مسلمانانو او هندوانو د ګډ او نژدې ژوند له امله زيات سوی دئ، چي ځيني کسان دې روا او حتی مستحب کار ته په کرکه ګوري او تر شرعي حرامو ئې هم سخت ناجايز بولي. دی وايي د دغه رسم د ليري کولو له پاره بشپړ کوښښ بايد وسي او بايد خلک په دې قانع کړل سي چي خپلي کونډې ميړونو ته ورکړي او که چيري کوم څوک په دغه برخه کي د چا پر خبرو او تبليغ غوږ نه نيسي نو بايد چي له هغه سره اړيکي وشلول سي. څکه چي د کونډې دوهم ميړه بد بلل يقيناً د

هندوانو د عقایدو اثر دئ کنه نو بل څه دلیل کېدلای سي چي خلک کوندو ته د بل مېړه د کولو اجازه نه ورکوي. سید احمد وایي که د دغه رسم او رواج په پرېښودلو کي ستاسي د مشرانو د رسم او عادت د ماتولو سوال را منځته کېږي نو هیڅ پروا ئې مه کوئ او د الله (ج) طرف تر ټولو حقوقو مقدم او افضل وبولئ (صراط مستقیم: ۱۲۹–۱۲۸مخونه).

**تصوف:**

محمد بن عبدالوهاب او د هغه پیروان د تصوف له مسئلې سره چنداني علاقه نه لري او که ئې په خپلو لیکنو کي یو څه علاقه ورسره اخیستې ده نو زیاتره ئې صوفیان او تصوفي لاري او طریقې غندلي او د شریعت پر احکامو ئې ډېره زیاته تکیه کړې ده. خو د سید احمد بریلوي تحریک په داسي شرایطو کي فعالیت کاوه چي د هندو مذهب نه یوازي د مسلمانانو په عقایدو او رواجونو کي څرګند نفوذ کړی وو بلکي دومره زیاتي طریقې او سلسلې منځته راغلي وې او دومره پیرانو ظهور کړی وو چي ټولنه ئې له بنګال څخه تر پښتونخوا پوري د عقایدو له بحران سره مخامخ کړې وه. که څه هم چي د تصوف لومړیو علمبردارانو او د بېلو بېلو طریقو موسسینو هم د شعر او نثر په وده او هم د علم او منطق په انکشاف او فلسفي افکارو او عقایدو په پرمختګ او د موسیقي د هنر په غني کولو کي ډېره ښه ونډه واخیستله خو په وروستیو پېړیو، په تیره بیا اتلسمه او نولسمه پېړۍ کي د پیري او مریدي کلتور یوازي د پټو سترګو د پیروۍ او د یو ډول فاسدي روحاني سوداګرۍ شکل واخیست. سید احمد له دغو پیرانو سره د مبارزې له پاره پخپله هم د خپل مرشد شاه عبدالعزیز څخه د دریو طریقو، چشتیه، قادریه او نقشبندیه خلافت او اجازت تر لاسه کړ او وروسته ئې د دغو تش په نامه پیرانو سره، چي د اسلام دین ئې د انحرافاتو له جدي خطر سره مخامخ کړی وو، د جنګ اعلان وکړ. سید احمد دغو پیرانو ته صوفي شعار ملحد نوم ورکړ او وې ویل چي هغوی د شریعت سره له مخالفت څخه هیڅ نه ېرېږي بلکي له شریعت سره مخالفت ئې خپله وظیفه ګرځولې ده او د شرک ډېر لوی لوی اعمال سر ته رسوي او خلکو ته د الحاد او کفر خبري ورښیي. سید احمد وایي چي د دغو کسانو سره باید د هغوی د اعمالو سره سم اقدام وسي. څوک چي د قتل وړ دي هغوی باید قتل سي او چي د تعزیر او سزا وړ دي هغوی ته دي سزا ورکړه سي او که د شریعت سره سم احکام ورباندي جاري کېدلای نه سي نو له هغوی څخه دي بېزاري وښودله سي او د هغوی له مجلسونو دي پرهېز وسي. که چیري د هدایت وړ وي هغوی ته دي د

هدایت خبري وسي او که نه وي نو د هغوی سره د مخامخ کېدلو څخه د ځان ژغورل هم ډېر ضروري عمل دئ. (صراط مستقیم: ۹۱-۹۰مخونه)

په صراط مستقیم کي، سیداحمد بریلوي په دریو مهمو طریقو کي د مرشدۍ ادعا کوي او د هري طریقې د ذکر او سلوک په باب تفصیل ورکوي او بالاخره د سیر فی الله خبري کوي. دا هغه څه دي چي د محمد بن عبدالوهاب او د هغه د پیروانو په ادبیاتو کي نه لیده کېږي. د محمدبن عبدالوهاب او د هغه د پیروانو په ادبیاتو کي، د احادیثو په استناد، پر قبرونو د جوماتونو جوړول او د خپلو پیغمبرانو له قبرونو څخه د عبادت ځایونو په حیث کار اخیستل شرک دئ. حضرت پیغمبر (ص) خپلو اصحابو ته اجازه ور نه کړه چي د هغه پر قبر باندي جومات جوړ کړي او هغوی ته ئې وویل چي زما له پاره ټوله مځکه مسجد دی-Kitab al Tawhid pp ٦۴-٦۵.

د سعودي عربستان فقید مفتي اعظم د آیه په استناد وایي چي پرته له الله تعالی (ج) څخه د مړو، ونو او بتانو څخه مرسته غوښتل شرک دئ او د عبادت کولو له هغه مطلب سره تضاد لري چي خدای تعالی (ج) د هغه له پاره انسانان او پیریانان پیدا کړي دي (اقامته البراهین: ۵).

دغه راز بل ځای د خپل مطلب د ښه ترا روښان کولو له پاره د سوره اعراف ۱۸۸ آیه راوړي. حق تعالی خپل پیغمبر ته په خطاب کي وایی: "ووایه چي زه د هیڅ خیر او شر د رسولو توان نه لرم او هر څه د خدای په اراده کي دي. که ما د غیبو د لیدلو توان درلودلای ما به ټول خیر څو چنده کړی وای او ما ته به هیڅ ضرر نه وای رسېدلی. زه یوازي تاسي ته خبرداری درکوم او هغو کسانو ته چي ایمان ئې راوړی دئ ښه زیری ورکوم".

مفتی اعظم لیکي چي پیغمبر پخپله له خدای تعالی څخه پرته له بل هیچا څخه مرسته نه ده غوښتې او د بدر په جنګ کي ئې پرله پسې دا ویل چي خدایه خپلي وعدې پر ځای که...(هغه کتاب: ۱۰مخ).

پر قبرونو باندي د زیارتونو او مسجدونو د جوړولو او له زیارتونو څخه د مرستو غوښتلو په برخه کي سیداحمد بریلوي او د هغه نژدې ملګری مولوي شاه اسماعیل دغه ته ورته نظریات لري خو کله چي د تصوف او د سیداحمد د کراماتو خبره راځي نو شاه اسماعیل، ګواکي خپل نظر پخپله ردوي. د طریقو په برخه کي وایي چي کله شاه عبدالعزیز په قادریه او نقشبندیه کي د سید احمد د شاملولو اراده وکړه نو د غوث الثقلین او خواجه بهاءالدین نقشبندي تر منځ تقریباً یوه

میاشت دعوه وه او د دواړو مقدس ارواح غوښتل چي سید احمد دي یوازي د هغه په طریقه کي شامل سي. تر څو چي بالاخره دواړو جوړه سره وکړه او د دواړو مقدس ارواح پر سید باندي خپله جلوه ظاهره کړه او بشپړه توجه ئې ورته وکړه او په یوه وخت کي ئې د دواړو طریقو خلافت په نصیب سو. مولوي شاه اسماعیل وروسته لیکي چي د چشتیه په طریقه کي د سید د شاملیدلو کیسه داسي وه چي سید د شیخ قطب الدین بختیار کاکي د قبر سره مراقبه وو او د هغه مقدس روح ورته څرګند سو او هغه ئې په خپله طریقه کي شامل کړ (صراط مستقیم: ۳۱۰).

موږ ګورو چي د مولوي شاه اسماعیل په ټولو آثارو کي د قبرونو او زیارتونو سره تقریباً د محمد بن عبدالوهاب په څېر مخالفت څرګند سوی دئ خو کله چي د سید احمد د کراماتو خبره کېږي نو بیا ګورو چي مقدس ارواح ظاهر ېږي او هغه ته په خپلو طریقو کي د شاملېدلو بلنه ورکوي. محمد بن عبدالوهاب د دغه راز خوبونو لیدلو او مقدس ارواح لیدلو ته څکه اړتیا نه درلوده چي له لویه سره ئې د دغه راز خوبونو او کراماتو ته د خرافاتو په ستر ګه کتل او له بلي خوا په عربستان کي د دغه راز پیرانو له مخالفت او ستونزي سره مخامخ نه وو، خو سید احمد مجبور وو چي د پیرانو سره د پیری په جامه کي وجنګېږي او لا څان په یوه وخت کي د دریو طریقو دونه مهم خلیفه معرفي کړي چي پر خلافت باندي ئې د طریقو د موسسینو جګړه وي. محمد بن عبدالوهاب خپله مبارزه، له لویه سره د خرافاتو، زیارتونو او د اسلام په دین کي د انحرافاتو او بېځایه بدعتونو پر ضد پیل کړې وه، او د شلمي پېړۍ تر نیمایي پوري ئې تحریک په همدغو کرښو کي پاته سو. که ئې چیري پخپله هم په دې خرافاتو کي عملي برخه اخیستې وای نو له مبارزې او تحریک څخه ئې هیڅ نه جوړېدل. سید احمد بریلوي له لویه سره د شاه عبدالعزیز پر لاس، چي پخپله هم پېژندل سوی عالم او روحاني شخصیت وو، وروزل سو او ټولني ته د یوه لوی پیر د مرید او وروسته پخپله د یوه زاهد او مرشد په نوم را دمخه سو. هغه ته د وخت اجتماعي شرایطو د پیرۍ او مرشدۍ او د انګریزي استعمار سره، چي ده د زړه له کومي کرکه ورڅخه درلوده، او په هند کي ئې د ټولو بد مرغیو عامل باله، د مبارزې وظیفه ور د غاړي کړه. دا دواړه هغه ټکي دي چي د سیداحمد بریلوي تحریک ئې د محمد بن عبدالوهاب د اصلاحاتو له تحریک څخه بېلاوه. محمد بن عبدالوهاب نه پیر وو، نه د تصوف کومي طریقي ته منسوب وو او نه ئې له انګریزي استعمار سره ډغري وهلې.

نور بیا ...



احمد فرزان / کابل

# د علامه رشاد په شعر کې تاریخي توکي

**د سر خبرې:**

د اکاډمیسین پوهاند علامه عبدالشکور رشاد شخصیت، تحقیق او تخلیق درې هغه مهم د څېړنې وړ توکي دي چې سپړنې او تحقیق ته ئې خورا ډېره اړتیا ده او بشپړ تحقیق ئې ښایي ډېر محققین تر ډېره وخته مصروف وساتي.

تر اوسه پورې چې په دې اړه څه لیکل سوي دي د شخصیت او تخلیقي اثارو په پرتله ئې پر تحقیقي اثارو نسبتاً ډېر بحث سوی دئ او علت ئې هم د نوموړي علمي تبحر او په بېلا بېلو پوهنو کې د هغه ډېر مغتنم تحقیقات دي چې څېړونکي ئې دونه وراخیستي دي چې د نوموړي تخلیقي اړخ ئې ورڅخه هېر کړی دئ.

زما په فکر د یوه هنر پنځوونکي، نازکخیاله، تخیل پروره او متعهد هنرمند په حیث علامه رشاد د تخلیق او په خاصه توګه د شاعرۍ اړخ هم دونده د تحقیق او تدقیق وړ دي، لکه د هغه څېړنیز اړخ.

لکه څنګه چې د نورو علومو په عرصه کې د استاد رشاد د تحقیق لمن پراخه ده همدغسې د شعر په دنیا کې هم د هغه ذهن ګڼ اړخیز دئ، د خیال او تخیل جهان ئې خورا ارت دئ او د فکري ورشو لمنه ئې خورا پراخه ده.

استاد رشاد د کمیت او کیفیت دواړو اړخونو څخه درنه شاعري کړې ده، نوموړی ۲۱ شعري ټولګې او منظومې لرې چې لس ئې چاپ سوې او یوولس نورې ئې لا ناچاپه پاته دي.

زما په فکر جامعیت او تنوع د علامه رشاد د شعر ځانګړتیا ده. د محتوی له اړخه د پوره ثقلت سره سره له معنوي او لفظي تعقیده خلاص دئ او سلاست، خوږوالی او رنګیني پکښې په پوره تول ساتل سوې ده.

د علامه رشاد له خپله قوله نوموړی دیارلس کلن وو چې په ۱۹۳۴م کال لومړی

۶۱
سواغه - کب
۱۳۹۳ل
علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله
کندهار

شعر ولیکه او د هغه وخت په طلوع افغان کې چې د علامه حبیبي (رح) په مدیریت خپرېده نشر سو.

دغه شعر د عبدالقیوم خان په نوم د برتانوي هند د پښتونخوا د یوه اوسېدونکي په ویر کې ویل سوی چې د انګریزانو له لوري د هغه عیسوي ملا د وژلو په تور اعدام سو، چې د اسلام پیغمبر (ص) ته ئې سپکاوی کړی وو.

د شعر یوه برخه داده:

لمن په وینو سره شوه د اسمان د کراچۍ
رغبږي مي په ستر ګو کي توفان د کراچۍ
تاریخ د نونسم د جدي میاشتي و د مارچ
پانسي سو غازي عبدالقیوم خان د کراچۍ
دیدار ئې ته نصیب کې ای خاونده
د غازي عبدالقیوم پایه بلنده
د اسلام پر اعتلا چې څوک خوښېږي
هغه واړه دي کامیابه په دنیا په اخرت سي

د استاد رشاد لومړۍ څېړنیزه لیکنه په ۱۹۴۱م کال خپره سوې چې په دې توګه نو د نوموړي شاعري تر لیکوالۍ مشره ده.

د استاد رشاد شاعري هم د فورم په لحاظ او هم د مضمون او محتوی په لحاظ جامع ده، نوموړي د غزل، رباعي، څلوریزې، مثنوي، قصیدې، مخمس، مسدس، ترکیب بند او ترجیح بند په فورم کي شعر ویلی او د معنی او مضمون له پلوه هم د نوموړي شعر دونه جامع دئ چي پر رزم او بزم، سیاست او اجتماع، اخلاقیاتو، مینې، وطن دوستۍ ښکلاپرستۍ او ژوند پر ټولو اړخونو حاوي دئ.

پوهنمل بریالی باجوړی د علامه رشاد د شعري موضوعاتو په باب داسي کاږي: "د استاد شاعرۍ کي متنوع موضوعات لیدل کېږي، لکه: ازادي، د وطن مینه، تاریخي پېښي، د طبیعت او ښکلا ترسیم، انتقاد او غندنه، د پند او نصحیت خبري، خودي او لوړ همت، چي په دې توګه د هرې موضوع څېړل یې یو په بل پسې د یو اوږد تحقیق ایجاب کوي[۲]".

د علامه رشاد د شاعرۍ د ټولو اړخونو څېړل د یوې مقالې د وس خبره نه ده او زما له پاره خوئې د یوه اړخ بشپړه څېړنه لا هم د اسمان خاته دي، زه غواړم یوازي د علامه رشاد په شعر کي تاریخي توکو ته یوه لنډه کتنه وکړم.

هغه شعر چي اصلي محور ئې روایت وي د نن په اصطلاح ورته روایتي شاعري وایي. پر فوکلوریکو شفاهي روایاتو ولاړ افسانوي، مذهبي، حماسي او تاریخي منظوم حکایات روایتي شاعري جوړوي.

د دغه ډول شاعرۍ د پیدایښت تاریخ نسته خو د زاړه بابل، یونان، هند او آریانا ډېری روایات د منظومو کیسوپه بڼه په شفاهي ډول خوندي سوي او تر موږه رارسېدلي دي.

تر ټولو زړه لیکلې روایتي منظومه چي څه باندي څلور زره کاله لرغونتوب لري د ګیلګامش (ګیل ګمش) حماسه ده. په تاریخي منظومو کیسو کي د ایلیاد او اوډیسې حماسې له ټرای سره د یونان د تاریخي جګړو کیسې بیانوي چي د (هلن) په نوم د یوې ښځي پر رامنځته سوي شخړي او د مهابهارت په اتم پرب (فصل) کي د کرن او ارجن د جګړو

کیسې د یادوني وړ دي.

د دې تر څنګ په اروپا کې د شکسپیر او ګویټي منظوم حکایات څکه د خاصې یادوني وړ دي چې ښکلاییز او هنري اړخ ئې جوت دئ. زما له نظره منظومې کیسې درې ډوله دي:

لومړی: افسانې (اساطیر) چې پر اولسی شفاهي روایاتو مبنی او د انساني ټولنې د بېلابېلو حالاتو تمثیل کوي. لکه په زاړه هند کې د (بیدپا) د (کرینکادمنکا) د حیواناتو کیسې چې وروسته د نړۍ ډېرو ژبو ته په منظوم او منثور ډول ژباړل سوي.

د فارسي ژبې اوځار شاعر رودکي دغه کیسې د کلیله او دمنه په نوم په فارسی نظم کړي دي. په فارسی ادب کې دغه برخه خورا غوښنه ده، حکیم ابوالقاسم فردوسي منظومې افسانې لري او د مولانا معنوي تر څنګ شیخ سعدي شیرازي او فریدالدین عطار او ګڼو نورو ناظمانو په دې برخه کې د پام وړ کار کړی دئ.

د پښتو ژبې په معاصرو شاعرانو کې ښاغلی عبدالباري جهاني د دغه ډګر پهلوان دئ چې په خورا هنري انداز سره ئې یو شمېر فوکلوریکي شفاهي کیسې د سترو پیغامونو سره یوځای راوړي او په نوې بڼه ئې وړاندي کړي دي.

دوهم: مصنوعي یا تخلیقي منظوم داستانونه، په دغه ډول کیسو کې شاعر طرحه په خپله ابداع کوي او په تخیلي انداز ئې د روایت په شکل وړاندي کوي.

په دغه برخه کې د خوشال خان خټک د (راسه واوره دا داستان) ۱۵۵ بیتیزه قصیده د یادولو وړ ده چې سرمحقق ښاغلي زلمي هیوادمل ئې په اړه لیکي: "زما په پوهه دا یوه مصنوعي حماسه ده، خو زموږ د ادبپوهانو لا دې خبري ته پام نه دئ اوښتی او یا نه دي ورته متوجه شوي چې د بابا نوموړې قصیده یوه تمام عیاره مصنوعي حماسه ده" (هیوادمل، سرمحقق زلمی، پښتو مصنوعي حماسې، د ماسټرۍ د دورې چپتر، ۱۳۸۹کال).

د علامه رشاد بابا په شاعرۍ کې دغه ډول منظوم مصنوعي داستانونه هم سته چې د مثال په توګه د (د څناورو شکایت) قصیده یادولای سو.

د دې قصیدې یوه برخه دا ده:

موږ که ګیډي په اومو غوښو مړې کړې
او خپرې مـو د بل په وینو سـرې کړې
یا مـــو وازمـــویل زورونه پر کـــمزورو
یا مو مات کـــړل د بې وســـو اورمېږونه
یا مــو څیري د خفیفو ژوو خـولې کړې
یا مو وتښتاوه خوب د ســـوی له ستر ګو
یا مو تل پر مېږه تون د هوسۍ شپې کړې
څناور یو په څـــنګلونو کې لــوی سوي
طبیعت زموږ په برخـــه دا دندې کړې
تر پایه[۳]

زموږ په معاصرو شاعرانو کې ښاغلی عبدالباري جهاني د دې برخې څخه ښه غوښنه پانګه لري چې د څنګلونو د زمري، ګیدړ، بیزو، چغال، غوایي او ... کرکټرونه ئې تمثیل کړي دي او د خپلې ټولنې له موجودو حالاتو سره سم پیغام ئې څني لېږدولی دئ.

دریم: پر مستندو تاریخي روایاتو مبنی حکایات چې دغه برخه زما د مقالې له موضوع سره ارتباط نیسي.

د علامه رشاد په یو شمېر شعرونو کې مستندي تاریخي، حماسي او ویاړني بیان سوي دي، د پښتنو توره او مېړانه توصیف سوې، هغه تاریخي وقایع چې د شاعر ذهن ئې متاثره کړی او غواړي خپل تاثر د شعر له لارې تر موږ پوري راورسوي.

استاد په خپلو شعرونو کي د ملي فکر د روزلو له پاره نه یوازې دا چې خپل فکر راسره شریکوي بلکي د تېر تاریخ جوړوونکو افغانانو حماسې راته وايي او هغه په داسي ژبه بیانوي چې زموږ عواطف او احساسات راپاروي او له وطن او اولس سره مو مینه زیاتوي.

تاریخي منظرې د استاد رشاد د شاعرۍ یوه په زړه پوري علمي برخه ده چې ډېره ئې په پښتو او یوه کمه برخه ئې په پارسي ژبه ده. علامه بابا په دې لړ کي تاریخي پېښې په داسي هنري انداز منظوم کړي دي چې څوک ګومان کوي ګواکي پخپله دغه پېښه دونه عاطفي جذب لري. لکه: (بریالی شهید) چې د سلطان العادل شیرشاه سوري (چې په هندوستان کي ئې له ۹۴۷څخه تر ۹۵۲ هـ ق پوري پاچا وو) د کالنجر کلا د نیولو کیسه ده چې پکښي پخپله نوموړی شهید سو.

او (د پېغور حسرت) د ګهګرو د مشر جسرت له لوري د لودي پښتنو پر مېنه د ناتار کیسه ده چې په ترڅ کي ئې ټوله زلمي شهیدانېږي او فیروزخان د مړو د ورښوولو پر مهال له دې ببري څخه چې نه ګانه زوی ئې د فرار په حالت کي وژل سوی وي جسرت ته د هغه د ښوولو څخه ډډه کوي.

او د (کوروش خون اشام) فارسي منظومه چې پکښي د ایران د خون اشام کوروش له ظلمونو پرده پورته سوې او د هغه د ظلمونو په وړاندي د یوې اتلي افغاني اتلولي انځور سوې ده.

## د علامه رشاد په شعر کي تاریخي توکي د تاریخ لیکني له اړخه:

د لوېدیځې نړۍ مشهور مؤرخ هیګل (۱۷۷۰-۱۸۳۱) د تاریخ لیکني له پاره درې پړاوونه یاد کړي دي:

لومړی: ابتدایي مرحله ده چې مؤرخ یوازې د پېښو بیان او توصیف کوي، لکه په لرغونو پېړیو کي د هیرودوت او توسیدیدس تاریخ لیکنه او یا لکه د هیومر اودیسه او ایلیاد.

دوهم پړاو: انتقادي تاریخ لیکنه ده چې مؤرخ پکښي د پېښو تر منځ په تړاو او علت و معلول پسي ګرځي.

دریم: فلسفي تاریخ لیکنه ده چې مؤرخ د پېښو تل ته ننوزي.

پورتني وضاحت ته په پام سره په نظم کي د تاریخي پېښو دغه ډول یادونه چې یوازې توصیفي شکل لري ابتدایي تاریخ ګڼلای سو. په ابتدایي تاریخ لیکنه کي که څه هم د پېښو د رښتینوالي د اثبات له پاره مؤثقو منابعو او د پېښو تر منځ تړاو او علت موندلو ته توجه نه کېږي خو دې اصل ته په پام سره چې (د تاریخ د علمي یون دوه بنسټیز فکتورونه د مکان او زمان یووالی دئ) د مکان او زمان قید ته باید پام وسي که نه نو بیا پېښه د تاریخ پر ځای د تشي کیسې او نکل رنګ خپلوي.

د علامه رشاد په شعرونو کي چې تاریخي پېښې راغلي دي د زمان قید ته کورټ پام نه دئ

سوی او مکان هم په بشپړ ډول نه دئ ذکر سوی، ځکه نو ډیر تاریخي ارزښت نه لري.

**د علامه رشاد تاریخي نظمونه د ادبي جوړښت له اړخه:**

۱. د هنریت له اړخه: که څوک د پوهاند رشاد دغه ډول شعرونه ښه په غور ولولي ښایي زما سره دا ومني چې استاد رشاد پر شعر واکمن شاعر دئ، هغه ډېر داسي څه چي شاعرانه نه دي شاعرانه کړي دي، هغه د پښتنو ملي تاریخي بهیر، د هغوی تاریخي اتلان او کارنامي ئې په عاطفي او تخیلي رنګ رنګولي او د شاعرانه ښکلا په تار ئې پېیلي د پښتنو مخ ته ایښي دي.

د پښتنو تاریخ له خونړیو جګړو، هیبتناکه تاړاکونو، ډغرو او غورځنګونو جوړ دئ او پوهاند رشاد د یوه هنرمند په څېر دغه درانه، ترخه تاریخي وقایع د خپل شعر په خوږو داسي خواږه کړي چي له عذوبت څخه ئې ادیب او غیرادیب، مؤرخ او لیکوال، متعلم او معلم ټوله ژبي ټکوي.

که له یوې خوا د پښتنو شاه زلمیو د تورو خرپ، د وینو شرپ او د ککریو ترپ د پوهاند رشاد شعر پښتون کړی او د پولادي متو، مظبوطو قدمونو او آهنینو ورمېږونو توصیف د هغه شعر ته اوچت صلابت ور په برخه کړی دئ نو له بله پلوه لفظي سلاست، معنوي حسن، عاطفي جذابیت او تخیلي تمثیل (منظرکشۍ) د هغه شعر ته ببساری لذت بخښلی دئ.

۲. د فورم له اړخه: د دې مقالې د لیکلو تر وخته ما (لیکوال) یوازي د علامه رشاد، بریالی شهید، د پېغور حسرت، لولپه پیغله او کوروش خون اشام تاریخي اشعار مطالعه کړي دي چي دا ټول د قصیدې په فورم کي ویل سوي دي.

۳. د محتوی له اړخه: د علامه رشاد شعري تاریخي کیسې تر ډېره دیداکتیکي خاصیت لرونکي حماسې دي، فخریه شاعري ده او منځپانګه ئې تر ډېره د پښتنو پر غیرت، دلاورۍ، خودي او لوړ همت، پر ازادۍ مینتوب او ملي غرور راڅرخي.

دا وو د علامه رشاد په یو شمېر شعرونو کي تاریخي موضوعاتو ته یوه کتنه، چي په هیڅ توګه نه یم توانیدلی د موضوع بشپړ حق ادا کړم، زه وړاندیز کوم چي د علامه رشاد د تخلیقي اثارو د تحقیق له پاره دي خاص سیمنارونه تنظیم سي په خاصه توګه د علامه رشاد د شاعرۍ د مختلفو اړخونو د څېړني له پاره باید جلا سیمنار راوبلل سي.

**منابع:**


۱. بدر، صدیق الله، د علامه رشاد ژوند او اثار، ناچاپ اثر.
۲. بریالی باجوړی، د پوهاند رشاد د شاعري په باب لنډ نظر، قلم جریده، ۱۳۷۰، ۳۴ – ۳۵ ګڼه.
۳. د زړه وینې، شعري ټولګه، علامه رشاد، ۱۳۷۰ کال چاپ، مخ.
۴. پښتو، یوولسم ټولګی، چاپ، ۱۳۸۹.
۵. ویکیپیډیا، پښتو، علامه رشاد.
۶. باوري، رسول: د تاریخ او مؤرخ په اړه لنډې څرګندوني. د مقالو ټولګه. سلام ټولنه، ۲۰۰۲.

# زموږ څېړونکي څه وايي؟

**د پښتو د کلاسيک ادب پر ژبه باندي د څېړني په برخه کي دې نتيجې ته رسېدلی يم چي د خوشحال خان، حميد مومند، رحمان بابا او نورو ژبه، سره له دې چي مرستندوی افعال په (ش) ليکي، خو که متنونه پخپل اصلي شکل برابر سي، نور گرامري جوړښتونه او لغوي زېرمه ئې له لوېديځي لهجې سره ډېره نږدې ده. دا موضوع مي (له کندهاره تر اټکه) کتاب کي په تفصيل سره وڅېړله (استاد هوتک).**

**روهيال**: په دې وروستيو کي تاسي د متن پوهني، متن څېړني او کره ليکني، په کلاسيکو متونو کي د موجوده ستونزو او د دغو ستونزو د ورک کولو له پاره کوټلي او پرله پېيلي تحقيقات کړي دي، د دغسي تحقيقاتو ضرورت څه وو؟ که د دغسي ضرورتونو د درک او اړتيا په اړه معلومات راکړی.

**استاد هوتک**: ستا د دې پوښتني جواب به يو څه په تفصيل درکړم او که په ځينو برخو کي ستا د پوښتني تر حدودو ووتم، خوا به نه راځخه بدوې.

ما چي کله د پښتو ژبي او ادب په باب د څېړني او مطالعې سفر پيل کړ، تر يو څه مزله وروسته له درو خبرو سره مخامخ سوم. اول دا چي د پښتو کره ليکني جريان د کره او معياري ژبي د رامنځته کېدلو اساسي پوښتنو ته سم جواب نه دئ ويلی او په اوسنی تش په نامه کره ليکنه کي د پښتوټولي لهجې په پام کي لږ نيول سوي دي. دوهم دا چي د پښتو کلاسيک ادب ژبه له اوسنيو لهجو سره سمه پرتله سوې

نه ده او دریم دا چي د پښتو متونو په ژبه کي لاسوهني سوي دي او هغه ژبه ئې تر موږ پوري راانتقال کړې نه ده چي شاعر یا لیکوال خپل هماغه ټاکلی اثر په کښلی دئ. د همدې درو استقامتو په باب څېړنه او تحقیق زما د علمي او ادبي کار اورشو راوټاکله او له تېرو څه کم دېرشو کلو راهیسي پر همدې اورشو باندي تېر یږم.

د کره لیکني په برخه کي مي د دې اوسني مسلط بهیر نقادانه څېړنه وکړه او راته ځرگنده سوه چي د دې بهیر ډېر زور د نوو لغتونو پر جوړونه او د ژبي پر سوچه کېدنه ولاړ دئ. دغه تمایل راته تاواني ښکاره سو او د څېړني په جریان کي راته معلومه سوه چي له دغه راز سوچه کېدني او لغات جوړوني سره زموږ د مشرانو پوهانو پراخ اکثریت مخالف وو، خو د ځینو بې ځایه مصلحتو له اسیته ئې د دغه بهیر خطرونه په زیات جدیت او قاطعیت سره نه بیانول. زیاتره ئې توصیه ډوله یادوني او ځرگندوني کولې. ما دا پدل مات کړ او په زغرده مي د لغت جوړوني له دغو متعددو فابریکو سره خپل مخالفت اعلان کړ او د پښتو له لویو لهجوسره د چلند چاره مي غیرعلمي او تاواني وبلله او دمقالو او کتابو په لیکلو مي لاس پوري کړ. د مقالو او کتابو تر خپرولو وروسته راته په ډاگه سوه چي د چا خبره "له تیارې هر څوک ببربړي، څوک حال وایي، څوک ئې نه وایي". د کره لیکني له دغه جریان او د هغه په نتیجه کي له راپیدا سوي پښتو سره خورا ډېر کسان ستونزه لري، خو په خوله څه نه وایي. همداسبب وو چي زما د کتاب لوستني ته تلوسه زیاته سوه او کتاب په لږ موده کي دوه واره چاپ سو. طبیعي خبره ده چي زما دې دریځ د هغو کسانو حسادت او حساسیت هم راوپاراوه چي په یوه او بل نامه ئې د ژبي د کره کېدو چاره په خپل انحصار کي نیولې وه. چا د سمتپال نوم راباندي کښېښوو او چا د لایسنس نه لرلو په خاطر د نظر ځرگندولو حق راځخه واخیست او چا و چا لا په بې مسئولیتۍ سره زما هڅو ته د ختیځي او لوېدیځي لهجې د مقابلې رنگ ورکړ. خو ما خپل تلاښ ته دوام ورکړ او په هره غونډه او هره مرکه او بل هر مناسب ځای کي مي پښتنو لیکوالو ته د مخالف نظر د اورېدلو د کلتور پر عامېدلو ټینگار وکړ او په کره لیکنه کي مي د پښتو ژبي د ټولو لهجو په پام کي نیول ضروري وبلل. زما دې تلاښ له ښکه مرغه نتیجه ورکړه اوس د پښتو ژبپوهانو په کتابو کي لا هم "سو، سي" او "ږغ، غږ" ته په یوه سترگه کتل کېږي. "دوې کتابچې" تر "دوه کتابچې" غوره او کره بلل کېږي، د (په) او (پر) پر ناسم استعمال مي خورا ډېري لیکني وکړې او دا مي ثابته کړه چي په دې برخه کي د لوېدیځي لهجې لار باید وپالل سي. له ښه مرغه اوس څوک "په آس سپور" ته کره نه وایي، بلکي "پر آس سپور" معیاري گڼي، خو له دغه حکم سره سره ځیني لیکوال د (په) او (پر) په توپیر باندي سم نه دي پوهېدلي او نور تمرین ته هم اړتیا لیدل کېږي. په دې ترڅ کي مي زما د خپلي لهجې ویونکي زلمي هم هغو بې قاعده گیو ته متوجه کړل چي په لوېدیځه لهجه کي دود لري. د مثال په توگه ښوونځی، پوهنځی

چي په لوېديځه لهجه کي د ښځينه کلمو په توګه ويل کېږي، ناسم وينګ دئ، بايد د مذکر په بڼه وليکل سي او داسي نور هم دررواخله. د پښتو ژبي د معياري کېدو په برخه کي مي پر دې زرين اصل باندي زور واچاوه چي د ژبي معياريت د هغې د ويونکو له پرمختګ سره مستقيم اړېکی لري. يو قوم چي په سلو کي پنځه نوي بېسواده وي، د هغو ژبه د نړۍ له نورو ژبو سره د سيالۍ ډېر چانس نه لري. د دې له پاره چي پښتو معياري سي، بايد د پښتنو باسواده کېدو، د پښتو کتابو او نشراتو زياتېدلو ته زياته پاملرنه وسي. دا نشرات که په هره لهجه وي، وي دي. له تاريخي پړاوو څخه د ټوپ اچولو تيسس په نړۍ واله سطحه کي هم د سياست پر ميدان او هم د فرهنګ پر اورشو ناکامه سوی دئ. پرېږدئ چي پښتانه کتاب او قلم ته راوبلل سي، د دغو کلمو له پاره نوي لغات جوړول ئې درد نه سي دوا کولای.

د انتقادي متونو د مطالعې او کره کتني په برخه کي راته ثابته سوه چي دغه موجود انتقادي متون له يوه مخه بيا کتني ته اړتيا لري. په اوسنيو برابرو سوو متونو کي لاسوهني د ان دپاسه دي. هر کاتب او مصحح د شاعر په لهجه کي لاس وهلی دئ، د شاعر کلام ئې په خپل مذاق د چا خبره معياري کړی دئ، ان تر دې اندازې چي د خوشحال خان نوم لا هم ور اړول سوی دئ او اوس ئې (خوشال) ليکي. د دې لاسوهني مثال داسي دئ لکه يو څوک چي زما نوم (مامد ماسوم) وليکي او دليل دا راوړي چي همداسي تلفظ کېږي. دا کار د پښتونخوا لوی سياسي مشر خان عبدالصمد خان راشرو کړ او خپل نوم ئې (اودل سمد) وکيښ، مګر دوهم پيرو ئې و نه موند. د متنپوهني ماهران په دې عقيده دي چي د انتقادي متن برابرولو لوی مقصد دا دئ چي موږ د شاعر يا ليکوال د وخت ژبه وپېژنو. که موږ د شاعر کلام نننۍ بڼې ته راواړوو او د چا خبره معياري ئې کړو، نو دا خو بيا د اوسنۍ زمانې ژبه سوه او په دې ډول به مو ژبپوه د هماغه عصر د ژبي په څېړنه کي پر خوله غوزار کړی او غبرګ غابښونه به مو ورايستلي وي. د مثال په توګه د يوه شاعر په کلام کي مرستندوی فعلونه (سي، سو) وي، (غږ) ئې د (ږغ) په بڼه راوړی وي او موږ بيا دغه کلمات د معياريت په پلمه (شي، شو، غږ) کاندو، نو ژبپوه به څرنګه وپوهېږي چي دا شاعر د لوېديځي لهجې ويونکی شاعر وو. که دا کار د ټولو شاعرانو په برخه کي عملي کړو، نتيجه به ئې دا وي چي د پښتو ټول شاعران د يوې محدودي جغرافيايي سيمي اوسېدونکي ول!؟ البته په متن کي د الفبې معياري بڼه کارول بېله خبره ده. د مثال په توګه د روښانيانو په کتابو کي (ځ) توری د دال په شکل ليکل کېده او تر لاندي ئې ټکی ايښووه. اوس که موږ همدغه متن برابروو، بايد دغه توری د (ځ) په ډول وکاږو. دا راز تصرف روا لاسوهنه ده او د شاعر يا ليکوال ژبه نه په مسخه کېږي. د همدغو اړتياوو له مخي ما يو لړ دېوانونه بيرته له سره ترتيب کړل. البته زما کار به هم له نيمګړتياوو خالي نه وي، خو دونده (دومره) ويلای سم چي تر هماغه پخوانيو چاپونو به د شاعر ژبي ته ډېر نږدې

وي. د پخوانيو متونو په چاپ کي د وخت مسئولينو نوري ناغېړی هم کړي دي. د جانان فدوي، ملا خيرالله هوتک، اسلم لونې، ملا شير محمد هوتک، عبدالله محزون او نور په لسو ټوکه دېوانونه د کابل په پښتو ټولنه او ملي آرشيف کي له تېرو شپړو لسيزوراهيسي پراته ول او چا ئې د چاپ له پاره کوچنوټې هڅه هم نه کوله. ما زلمي څېړونکي د دغو دېوانو د چاپ له پاره وهڅول او د خپلي مرستي وعده مي هم ورسره کړې ده چي تر يوې اندازې بريالی سوی هم يم.

د پښتو د کلاسيک ادب پر ژبه باندي د څېړني په برخه کي دې نتيجې ته رسېدلی يم چي د خوشحال خان، حميد مومند، رحمان بابا او نورو ژبه سره له دې چي مرستندوی افعال په (ش) ليکي، خو که متنونه پخپل اصلي شکل برابر سي، نور گرامري جوړښتونه او لغوي زېرمه ئې له لوېديځي لهجې سره ډېره نږدې ده. دا موضوع مي (له کندهاره تر اټکه) کتاب کي په تفصيل سره وڅېړل.

دغه اړتياوي وې چي زه ئې پخپل څه باندي دېرش کلن څېړنيز ژوند کي مصروف ساتلی يم او لا لگيا يم او لا لگيا يم.

**روهيال**: زموږ د ژبي متن څېړنه د همسايه ژبو او يا په پراخ ډول د نړۍ د نورو ژبو د متن څېړني سره څنگه پرتله کوی؟

**استاد هوتک**: که مو له همسايه ژبو څخه مراد فارسي او اردو وي، نو په دې دوو ژبو کي د متن څېړني کار تر پښتو هم د کميت په لحاظ او هم د کيفيت له مخي ډېر پرمختللی دئ. په برتانوي هند کي مطبعه تر افغانستان دمخه ايجاد سوې ده. د محققينو د کار ثمره د همدې مطبعو له لاري د خلکو تر لاسو ورسېده. د آثارو نشراو خپرېدل د محقق د لا زياتي هڅوني سبب کېږي. د برتانوي هند محققينو تر افغاني څېړونکو د خپل کار په اورشو کي آزادي درلوده. سانسور نه وو. د څېړ نو له پاره مدارک زيات ول. د کتابخانو د تشکيل عنعنه ئې ډېره اوږده سابقه درلوده. او د دوی محققينو عربي او انگليسي ژبي زده وې او نور. په افغانستان کي نشرات د دولت په انحصار کي ول او دولت بيا يوه منسجمه او وخت له غوښتنو سره سمه نشراتي پاليسي نه درلوده. زموږ خلکو حتی قرآن شريفونه او ديني کتابونه لا هم پخپل وطن کي چاپولای نه سوای. د دولت نشراتي موسسې بيا د هغه چا پر مذاق برابري څرخېدلې چي د دغو موسسو په سر کي به ناست ول. د نوري نړۍ د متنڅېړونکو له کار سره خو زموږ کارونه کوروټ د پرتلې وړ نه دي. خو له بلي خوا چي زموږ دې بې وسۍ او بېکسۍ ته ځوک وگوري، اوس هم زموږ پوهانو د متن څېړني په برخه کي تر خپلو امکاناتو زيات څه برابر کړي دي.

**روهيال**: د پښتو متونو د تهيې او برابرولو په برخه کي تر پښتنو مخکي مستشرقينو کار کړی دئ. د مستشرقينو کارونو ته په کوم نظر گورئ؟

**استاد هوتک**: د مستشرقينو د کار اهميت په دې کي دئ چي پښتو ژبه ئې د لوېديځي نړۍ اوسېدونکو ته وروپېژندله. زموږ خطي آثار ئې له تباهۍ څخه راخوندي

کړل. البته د کار نیمګړتیاوي ئې زیاتي دي چې د دغو نیمګړتیاوو او تېروتنو په برخه کې په افغانستان کې علامه رشاد تر بل هر چا ډېر کار کړی دئ.

**روهیال:** د پښتو ژبې د متونو په برخه کې په افغانستان کې دننه او تر افغانستان دباندي پښتنو پوهانو او عالمانو کارونه کړي دي، ستاسي په نظر د دغو دوو بېلابېلو حوزو کارونه یو د بل په مقابل کې کومي نیمګړتیاوي او ځانګړتیاوي لري؟

**استاد هوتک:** د افغانستان د پښتنو عالمانو او د ډیورنډ د پوري غاړي پښتنو پوهانو تحقیقاتي کار که څوک وڅېړي، نو د کمیت په لحاظ د پوري غاړي د کار پله درنه ده خو د دې غاړي د پوهانو کار ما ته د دقت او عُمق په لحاظ غوره ښکاري. د ډیورنډ کرښې د پوري غاړي په پوهانو کې ما ته د استاد کامل مومند، مولانا عبدالقادر، قلندر مومند، همېش خلیل، پروفیسر سیال کاکړ او نورو کارونه د ډېري یادوني وړ دي. دم درحاله د پېښور او کوټې د اوسنیو ځوانو محققینو کار ته زما ډېره تمه ده، ځکه د افغانستان پخواني آکاډمیک مرکزونه له منځه تللي دي او بیارغونه ئې یو څه وخت او د چاراواکو ټینګه اراده غواړي، خو د پښتونخوا پوهانو ته اوس د څېړني او تحقیقي کار زمینه تر دې خوا ښه پوره زیاته مساعده ده. هیله ده چې د پښتنو دغه ماته ښېرې له ډوبېدو وژغوري.

**روهیال:** د پښتو د کلاسیک ادب ډېر معلوم دېوانونه او د دې ژبې نور متون لا تر دې وخته نه دي چاپ سوي، خو برعکس نوي کتابونه په پېخر چاپېږي، د خپلي ژبې او اسلافو له آثارو سره دغه ډول بې غوري چا ته متوجه ده؟ او په دې برخه کې څه کول په کار دي؟

**استاد هوتک:** زه پخپله په دې عقیده یم چې که ئې مالي امکانات وي، د پښتو ټول آثار باید چاپ سي. زموږ سرکاري ادارو به له هغو کتابو څخه مخ اړاوه چې مذهبي متون به ول. دوی د سرکار له خوا د مادي مرستي له مضیقې سره مخامخ ول او هڅه ئې دا وه چې د چا خبره ضروري متون خپاره کړي. خو د ضروري کتابو د چاپ له پاره ئې معیار پخپل زړه کې پټ ساتلی وو. بل د تحقیقي کارو د چاپ امکانات د یو څو کسانو په انحصار کې ول او هغوی بیا د خپلي سلیقې او سایقې له مخي مواد چاپول. یو راز مسابقه هم روانه وه .د فدوي دېوان، د خیرالله هوتک دېوان ، د اسلم لوڼ دېوان، د شیرمحمد دېوان، د عبدالله محزون دېوان، د عبدالنبي ببتني دېوان، د عبدالعزیز کندهاري دېوان، د عبدالله جان لودین دېوان، د ملا محمدامان داوي دېوان، د ملا یارمحمد کندهاري دېوان او نور په لسو دېوانونه د همدغي سلیقې و سایقې قرباني سوي دي او تر ننه ئې چا خپرولو ته زړه نه دئ ښه کړی. د دې بې غوریو مسئولیت د هغو کسانو پر غاړه پروت دئ چې پښتو ټولنه ئې اداره کوله. زه په دې برخه کې خپلي هڅي کوم ، خو زما امکانات محدود او له وطنه لیریوالی ئې ستر خنډونه دي. البته د عبدالله محزون دېوان په دې شپو کې په کندهار کې چاپ سو.

**روهیال**: د متن څېړنې په ساحه کې پخواني کارونه د اوسنیو هغو په پرتله څنګه ارزوی؟

دواړه د ارزښت وړ دي. اوسني کارونه تر پخوا د کمیت په لحاظ ډېر سوي دي خو د کیفیت خوا ئې یو څه خواره بوښکې ده او د دې کار سبب بیا دا دئ چي موږ د متن څېړنې په برخه کي اوس نه زیات کدرونه لرو او نه هم هڅوونکي اداري او موسسات.

**روهیال**: په افغانستان کي ځیني متون چاپ سوي، چي له بېلابېلو خطي نسخو څخه تهیه سوي دي، خو نسخه بدیلونه نه دي ورسره راوړل سوي. د متن پوهني له نظره دغسي متونو ته په کومه سترګه ګوری؟

**استاد هوتک**: پر دغه موضوع خو زه مجبوره سوم چي د افغانستان او پښتونخوا ټول خپاره سوي متون تر نقد وباسم. (د پښتو متون سمېدل غواړي) اول ټوک دوه کاله پخوا چاپ سوی دئ. پر دوهم ټوک ئې کار دوام لري. خو د خواشینۍ خبره دا ده چي د متونو په نوو چاپونو کي هغو ټکو ته پاملرنه نه کېږي چي ما ئې د سمېدلو غوښتنه کړې ده. زما په نظر خو زموږ ټول خپاره سوي متون دوهم چاپ ته اړتیا لري، خو دوهم چاپونه باید د لومړیو چاپونو کټ مټ کاپي نه وي، بلکي هغه نیمګړتیاوي ئې باید اصلاح سوي وي چي په لومړیو چاپونو کي ارادي او غیرارادي راغلي وي. لکه په تېر جواب کي چي مي ویلي دي، دا کار هله ممکن دئ چي زموږ علمي موسسې د دغه کار له پاره علمي کدرونه وروزي او په دولتي سطحه هم ورته لازم امکانات برابر سي.

**روهیال**: انتقادي متن باید کومي ځانګړتیاوي ولري او یا د کومو ځانګړتیاوو په لرلو سره یو عادي متن له انتقادي متن څخه بېلولای سو؟

**استاد هوتک**: داموضوع ما په خپل کتاب کي څېړلې ده او هورې مي کښلي دي.

**روهیال**: متن څېړونکی باید کومي ځانګړتیاوي ولري؟

**استاد هوتک**: د متن پر ژبه تسلط او د متن د تاریخي سوابقو او د مؤلف د ژوند او چاپېریال په باب باید معلومات ولري. امانتکار باید وي او په متن کي لاسوهني ته باید په هیڅ راز پلمو اجازه ور نه کړي.

**روهیال**: د متنپوهني له نظره په متونو کي لاسوهني ته په کومه سترګه ګورئ؟

**استاد هوتک**: په متونو کي لاسوهنه او په ژبه کي ئې مداخله که د جهالت او ناپوهۍ له وجي وي، هم ناروا کار دئ او په قصدي او ارادي توګه وي، زه پخپله د خیانت په سترګه ورته ګورم. که څوک د یوه شاعر په کلام کي لاسوهنه وکړي. کلمات ئې د معیار په پلمه د نن ورځي په شان کړي، یې ګاني ئې د خپلي لهجې په ډول ولیکي او نور دې ته ورته بدلونونه پکښې راولي، نو پر دغه کلام باندي نور د شاعر نوم اینښوول هسي ټوکي او مسخرې دي. دا کلام خو د هغه وخت ژبه موږ ته نه راپېژني چي شاعر شاعري پکښې کړې ده. په شعر کي د مصحح له خوا له خپل ذهنیت سره موافق بدلونونه راوستل له خیانت پرته بل نوم نه سي درلودلای.

**روهیال:** په متونو کې د شاعر یا لیکوال د لهجې له نه مراعته څخه کومې ستونزې زېږي؟

**استاد هوتک:** متون د ژبې د څېړنې له پاره اومه مواد دي. که دا مواد پخپله اصلي بڼه خپاره نه سي، ژبپوه به څرنگه وکولای سي، د هغه شاعر یا لیکوال د عصر پر ژبه قضاوت وکاندي چې کلام ئې زموږ مصححینو د نن ورځې پر ژبه باندي برابر خپور کړی وي. د مثال په توگه سل کاله وړاندي یو شاعر پخپله لهجه کې (لمر) ته (نمر) وایه او په شعر کې ئې هم دا دوهم شکل راوړی وي، مصحح دا حق نه لري چې د معیار په پلمه د (نمر) پر ځای (لمر) ولیکي. که دا کار وکړي نو د ژبې نور څېړونکي به څرنگه وکولای سي د (لمر) کلمې تاریخي بدلون وڅېړي؟ په متونو کې هر ډول لاسوهنه ناوړه کار دئ خو هغه لاسوهنه چې د متن ژبه وراړوي، د خیانت تر درجې رسېږي. له دغه راز لاسوهنې څخه باید په جدي توگه ډډه وسي.

**روهیال:** د متن په نقل کې د امانتکارۍ مسئله څونه مهمه ده؟ د متنپوهنې له نظره د متونو پخوانی لیکدود پر اوسني لیکدود برابرول په امانت کې خیانت دئ، که د وخت ضرورت؟

**استاد هوتک:** د دې پوښتنې جواب مې په تېرو جوابونو کې درکړی دئ.

**روهیال:** د متونو اوسنۍ چاپې لړۍ څنگه ارزوئ؟ په اوسنیو چاپې متونو کې کوښښ کېږي، چې د بېلابېلو لهجو د شاعرانو او عالمانو آثارو ته په اصطلاح معیاري بڼه ورکړل سي، دغسې هڅې ته د متنپوهنې له زاویې څخه په کوم نظر گورئ؟

**استاد هوتک:** دا هغه مصیبت دئ چې پر پښتو باندي د خواخوږۍ په نیامت نازل سوی دئ خو د پښتو آثارو بېخ و بنیاد ئې ورایستلی دئ.

البته د لیکدود عصري کول جلا خبره ده او د متن معیاري کول جلا. د سوچه کېدنې مینه بیا بله ټکه ده چې پر ژبه رانازله سوې ده. پښتو او فارسي ژبې دواړې اوس د یو لړ سیاسي دلچسپیو قرباني کېږي.

**روهیال:** په اوسني حال کې ځینو ځوانو متن څېړونکو د متن څېړنې په ساحه کې کار کړی دئ، د دغو ځوانو محققینو کارونه څنگه ارزوئ؟

**استاد هوتک:** امید بخښونکي دي. د کندهار له ځوانانو سره زه منظم اړیکې لرم او تر خپله وسه ئې د ستونزو په حل کې مرسته ورسره کوم. په اوسنیو ځوانانو کې خورا غښتلې ارادې او مستعد مغزونه موجود دي. صرف هڅونې او لارښوونې ته اړتیا لري. زما په نظر د هیواد د ټولو ولایتو د ځوانانو تر منځ منظمو همکاریو ته اوس تر بل هر وخت زیاته اړتیا سته. ځوانان باید د انټرنیټ له اوسنیو امکاناتو څخه یو د بل تر منځ د علمي همکاریو په راکړه ورکړه کې مثبته استفاده وکړي. یو د بل په غونډو او سیمینارو کې برخه واخلي. د لهجو تر منځ باید فاصلې رالنډې کړي. ما ته هر وخت پر دې خبره ارمان ودرېږي چې وام کشکې مې دننه په هیواد کې د استوگنې نېکمرغي په نصیب وای، ښایي تر یوې اندازې

مي د خوانانوپه هڅونه کي خپل پور ادا کړی وای.

**روهيال**: د اوسني نړۍ نوو پرمختګونو (د کمپيوټر منخته راتګ، د انټرنيټ آسانتيا، د ويب پاڼو موجوديت او داسي نور ...) د پښتو متونو د تهيه کېدو او برابرېدو له کاروانه سره ډېره مرسته کړېده، طبيعي خبره ده چي دغسي چټک پرمختګونه خيني نيمګړتياوي هم لري، که د دغي عرصې د پرمختګونو او نيمګړتياوو په باب معلومات راکړی خوشحاله به سو.

**استاد هوتک**: د اوسنيو امکاناتو او اسانتياوو په اغېزمنتوب کي خو هيڅ شک نسته. هغه کار چي په تېرو درو څلورو لسيزو کي سوی دئ، په تېرو دوو پېړيو کي لا هم نه وو سوی. مګر له دغو امکاناتو څخه انفرادي ګټه اخيستله کېږي. د دغه درانه کار له پاره د دولت په سطحه کي ارادې او عمل ته اړتيا سته. انفرادي هڅي د ستايني وړ دي، خو د کار انسجام ته تاوان رسوي. له بلي خوا زموږ متنپوهان په دې عقيده چي که يو اثر پنځوس شپېته کاله پخوا چاپ سوی وي. اوس ئې دوهم وار چاپ ته اقدام نه کوي. دې کار دآثارو د تکثير او د ژبي د بډايتوب چاري ته سخت تاوان رسولی دئ.

**روهيال**: لږ پوهان دې ته زړه ښه کوي، چي د متن څېړني درانه بار ته اوږه ورکړي. د دې له پاره چي نوي څېړونکي او خوانان مو د اصولو له مخي د متن څېړني کار ته زړه ښه کړي څه کول په کار دي؟

**استاد هوتک**: په پوهنتونو کي د متنپوهني ډيپارټمنتونه بايد جوړ سي. متنپوهنه بايد د دوديزو پوهنو په پلمه له درسي نصابه و نه ايستل سي. کمپيوټر ليکنه اسانه کړې ده خو د خطاطۍ هنر بايد مړ کېدلو ته پرې نه ښوول سي. په عصري وسايلو باندي زياتي تکيې په غرب کي اوس زياتي ستونزي رامنځ ته کړي دي. زلميان په سپيلينګ کي مشکلات لري. حافظې ئې کمزوري سوي دي. په جمع و تفريق او ضرب و تقسيم کي مشکلات لري.

**روهيال**: تاسي د متن پوهني تر څنګ د متن څېړني په ساحه کي عملاً کار کړی دئ، د کلاسيک ادب څو دېوانونه او متنونه مو تهيه کړي او ترتيب کړي دي، که د خپلو تجربو له مخي راته وواياست چي د دغي ساحې کارونه د عادي څېړنو په پرتله څونه ستونزي او خواري لري؟

**استاد هوتک**: د متونو د برابرولو او څېړني کار ما د ملا امير له دېوانه پيل کړی دئ. د دغه دېوان يوه نسخه په کندهار کي د دوست محمد برېښ په خطي مجموعه کي خوندي وه او ما ته د ۱۳۶۵ش کال په حدودو کي په کندهار کي له يو شمېر نورو خطي نسخو سره لاس ته راغله. د همدې دېوان ترتيبول او چاپ ته تيارول د متن څېړني په برخه کي زما د کار شروع وه. بيا مي د خپل نيکه مولوي صالح محمد هوتک پاشلي ويناوي چاپ ته تياري کړې او تر هغه وروسته مي د ښاغلي سرمحقق زلمي هيوادمل په غوښتنه د دوست محمد ختېک بحرالعلوم د ملي آرشيف له يوازنۍ نسخې څخه چاپ ته

تیار کړ. دا کتاب ډېر ضخیم وو او ما ئې متن پر دوو برخو ووېشه. لومړۍ برخه مي ئې چاپ کړه خو دوهمه ئې لا پاته ده. د دې کارو پر څنګ مي په زېري جریده کي د ځینو پښتو خطي نسخو د معرفۍ لړۍ راونښلوله. زما دغه مقالې ځینو پوهانو وستایلې او په دې ډول زه د متن څېړني پراخي اورشو ته ورکښېوتلم. تر اوسه مي پر بحرالعلوم، د ملاامیر دېوان او پاشلي ویناوي سر بېره د حنان بارکزي دېوان، د لوی احمدشاه بابا دېوان، احمدشاهي شهنامه، د سیدجمالدین افغان د تتمة البیان پښتو ترجمه (د مولوي محمدرفیق حبیبي په قلم)، د علامه رشاد د کندهار یادابښتونه او جغرافیایي یادابښتونه، د عبدالرحیم هوتک دېوان، د شیخ ادم خېشکي دېوان او د پیرمحمد کاکړ معرفة الافغاني چاپ کړي دي.

دغه راز مي د شمس الدین کاکړ دېوان، عبدالله محزون دېوان په چاپ کي هم مرسته کړې ده. په یو شمېر هغو دېوانو کي مي هم تر یوې اندازې ونډه اخیستې ده چي د چاپ وار ئې لا نه دئ رسېدلی. زما د دغو کارو ستونزي هغو کسانو ته معلومېږي چي د متن برابرولو په کار کي ئې د تندي خولې تویي کړي دي. دا خبره باید هم وکړم چي د متن برابرولو په کار کي اوس هم پر نوو مسایلو پېښېږم او زده کوم ئې. د متونو برابرولو پر څنګ مي د چاپ سوو متونو پر کره کتنه هم وخت تېر کړی دئ او د مستشرقینو د کار په ګډون مي په افغانستان او پښتونخوا کي چاپ سوي متون نقد کړي دي. د دغه کار لومړی ټوک د (پښتو متون سمېدل غواړي) تر نامه لاندي دوه کاله پخوا چاپ سوی دئ. په دغه کتاب کي مي د متن څېړني پر میتود او تیوري باندي هم څېړنه کړې ده. د متونو کار ډېر ستونزمن کار دئ، په تېره بیا زما له پاره چي هم ئې متن برابروم، هم ئې ټایپوم او هم ئې مقابله کوم او هم ئې چاپ ته سپارم. که په دې برخه کي ستاسي او ښاغلي حمدالله صحاف همکاري نه وای، خدای خبر چي دا بارونه به ما په سمه توګه تر مزله رسولای سوای.

**روهیال**: استاد هوتک صاحب! په آخر کي به وپوښتم چي: اوس په څه شي اخته یاست؟ یا په بل ډول که د خپلو وروستیو کارونو په اړه د کندهار مجلې لوستونکو ته معلومات ورکړی خوشحاله به سم.

**استاد هوتک**: د زړ و یوې شپې تر کار وروسته زه د خپلو تېرو کارونو او پاڼو په تنظیم بوخت یم. د پښتو متون سمېدل غواړي دوهم او دریم ټوک ته مواد برابروم، د شمس الدین غلجي پر تحفة العابدین باندي مي کار روان دئ. د جانان فدوي دېوان ته هم کله کله وخت ورباسم. دعلامه رشاد د ادبي قاموس یو ټوک مي برابر کړی دئ او د نورو کار مي په پروګرام کي دئ. اوږدې پردېسۍ او پر څنګ ئې ناروغۍ مي د کار پر دوام اغېزه کړې ده او هغه د پخواسرعت راته پاته نه دئ. ما په تېرو درویشتو کالو کي هر کال یو، دوه او کله کله درې اثره خپاره کړي دي. اوس چي مي د کار سرعت ته ګورم، ډېر مي خوروي او د زړه سوده او تسلا په دې کوم چي: "انسان تر خپله وسه پړ دئ".

پای



ناصر ریشاء/لندن

# اشرف المخلوقات!



ماخوستن ناوخته له کار څخه کور ته راورسېدم. ډېر ستړی وم. موټر مې د خپل کور څخه څو ګامه لیري ودرا وه او خپله پر پښو د کور پر خوا را رهي سوم. کور ته نارسیده یوه ګیدړه په مخه راغله. ګیدړه زما پر لاره ځای پر ځای راته ودرېده او په خپلو بربښندکو سترګو په ځیر - ځیر راته په کتو سوه. زه ورو- ورو ورنژدې کېدم، خو دا پر خپل ځای مېخ ولاړه وه. نه پوهېدم چې "پیشته" ورته ووایم، "کیشه" که بل څه. فکر مې کاوه چې دې و ما ته، زما په سیمه کې، لاره نیولې ده، خو دې په خپلو سترګو ما ته بل حقیقت وایه: "یا، ته زما کور ته راغلی یې، دا زما کوڅه ده، ته پردی یرغلګر یې، نه زه، زما پلار او نیکه تر تا قرنونه دمخه دلته میشت ول، دا زموږ خپل ټاټوبی دئ، تاسي راغلاست، زموږ مېنه مو لاندي کړه، سړکان مو وایستل، موټران مو پر رارهي کړل، لوی لوی بلاکونه مو ودرول او اوس ته غواړې چې ما هم وشړې؟ ځان ته مو خورا لو لوټه نه ده ایښې؟ پر ما د نورو حیواناتو ګومان مه کوه، ما نه سې خطا ایستلای، ورځه خپله لار دي وهه!"

دغي پېښي زما د مغز په شاړه مځکه کي د یوه سوال تخم وکرلی. لاندي کرښي د هغه تخم د مېوې په توګه ستاسو مخ ته ړدم.

انسان او حیوان د فزیکي جوړښت له مخي او له هغه څخه د رازېږېدلو بنیادي- حیاتي اړتیاوو له بابته یو بل ته خورا ډېر سره

ورته مخلوقات دي. مثلاً: دواړه د خپل ژوند د بقاء له پاره هوا، اوبو، غذاء، اطراح، خوب او جنسي عمل ته اړتیا لري. همدارنګه دواړه مخلوقات په طبیعي ډول غواړي او هڅه کوي چي د ډېري یخنۍ او ګرمۍ، رنځ، ژوبلي او نورو طبیعي او غیر طبیعي دښمنانو څخه خانونه او خپلي کورنۍ خوندي وساتي. انسان او حیوان د خلقت له اولي ورځي څخه تر نن پوري پر دې مځکه، د پورته اهدافو د لاسته راوړلو او ساتلو په مسابقه کي منډي وهي. دا باید ومنل سي چي، انسان د خپل حریص او ناشکره فطرت په قومانده او د خپل فوق العاده مغز په مرسته د طبیعت پر دې ارت میدان، په زیاتو برخو کي، ښه ډېر وړاندي تللی دئ. د دغه پرمختګ لوی لامل، په انسان کي د خپلي پوهي، افکارو او تجربو د انتقالولو د ظرفیت صفت دئ. په بله وینا، یو حیوان د خپل ژوند د تجربو ټوله متاع له خانه سره وړي او بل نسل ئې مجبور وي چي تقریباً هر څه پخپله د سره زده ئې کړي، خو یو انسان د نورو تېرو سوو همنوعانو د لاسته راوړنو څخه ښه پرېمانه ګټه اخلي. که ئې خپله هم څه پر اضافه کړل هغه هم، معمولاً راتلونکو نسلونو ته ورنقلیږي. چي دا بهیر ورځ په ورځ پوهه ډېروي او محصولات ئې ثیقلوي. علاوه پر دې، له مذهبي پلوه هم د دواړو مخلوقاتو خالق حیوان ته نه، بلکي د انسان لارښوونې ته پیغامبران او کتابونه را استولي دي. تر څو دی وکولای سي خپلي بنیادی– حیاتي اړتیاوي (چي په سر کي اشاره ورته وسوه) په یوه منظم او عادلانه چوکاټ کي لاسته راوړي او د خپل هادي خالق د مرستي کورودانۍ او شکر د ادا کړي.

تر دغه ځای پوري که څوک اټکل وکړي نو به خامخا و وایي چي: "انسان خو، په دې دومره ورکول سویو امتیازاتو او وسایلو باید په ډېره آسانۍ وکولای سي، چي د دغه طبیعي مسولیت تر سلطې یا الهي ماموریت تر عهدې په کامیابۍ راووزي. حیوان خوارکۍ چیري دومره توان لري". ښایي همدا دلیل به وي چي "انسان اشرف المخلوقات" بلل سوی دئ.

ښه، اوس به راسم و دې پوښتني ته، چي انسان د دغو امتیازاتو او لوړي مرتبې په درلودلو سره د خپلو عادي – بنیادي اهدافو په لاسته راوړلو کي د حیوان په پرتله چیري موقعیت لري؟ د جواب موندلو له پاره راځئ چي پر دواړو یو څغلنده نظر وکړو.

- که انسان په خپل فوق العاده مغز او نطق نازېږي، نو بیا څنګ ته ئې حرص، کرکه، حسد او د غچ اخیستلو ناوړه صفات هم لري. خو حیوان که دا دوه ګټور صفتونه، ډېر، نه لري نو دا نور تاوانی خویونه هم چندان نه پېژني.
- د انسان په فطرت کي دغه عامیانه وراشه "میم زر ما ټول ئې زما" حکاکي سوې ده. دی هر شی و خان ته غواړي – مړېده نه لري. که ټوله دنیا ور ورسپېري بیا ئې هم سترګه په نورو سیارو کي وي، خو حیوان یوازي د خپل او کله کله د خپلو بچیانو د نس د مړولو له پاره ښکار کوي، او تر مړېدو ورسته په چا کار نه لري.

- انسان خپل د بشري تاریخ پاني په خپل منځي جګړو تکي سرې کړي دي. او تر دې دمه ئې د دوو نړۍ والو جګړو ویاړ خپل کړی دئ. خو د حیوانانو په حیواني تاریخ کې یو له بل سره ډلیزه جګړه بیخي نه لیدل کیږي. نړۍ واله جګړه څه چې د دوو ځنګلونو په سطحه، د مختلفو حیواناتو په منځ کې یوه سپکه خوشکه یا ترخه خبره لا نه ده پیښه سوې.
- نن انسان د لوږي، بې آبۍ، او در به درۍ سره لاس او ګرېوان دئ، خو حیوان که څیري وږی، تږی او بې کوره هم وي نو خامخا به د انسان ملامتي وي.
- انسان د حیوان کور ورڅخه اخیستی دئ، طبیعت او چاپېریال ئې ککړ کړی دئ او د ټولو ښکلي کُـرې ته ئې ډېر تاوان رسولی دئ، خو حیوان یو له دغو ناوړه کارونو څخه لا نه دئ کړی، البته د طبیعت په ښکلا کې ئې لا نوره ونډه هم اخیستې ده.
- انسان که اور اختراع کړی دئ، حیوان بیا د خپل ورور کور هم نه دئ سوځلی.
- د انسان تمدن د حیوان په جنګولو، په سرکس کي نڅولو. د لذت له پاره په ښکارولو یا په قفس اچولو کي دئ او د حیوان وحشت او بدویت د پورته افعالو په نه کولو کي.
- انسان د پورته یادو سوو ساده حیاتي اړتیاوو د موندلو له پاره خپل خارق العاده ماغزه ځغلولي دي او بېلابېل مذهبونه، سیاسي مکتبونه او ایډیالوجیکي چوکاټونه ئې د تاریخ په بېلو پړاو کې، مسلسل پر خان کتلي او لیري غورخولي دي او بېرته ئې، که غوښتلي او که نه د هاغه حقیر حیوان د ځنګل ولایتغیره قانون (زور پر زور) ته پناه ور وړې ده، له افرادو څخه نیولې بیا تر هیوادونو پوري مدام زورور کمزوري خوړلي او خوري، خو حیوان پر همدا واحد ورښوول سوي قانون کامیاب روان دئ، او هیڅ کله د نورو قوانینو د جوړولو شوق او ضرورت نه دئ ورته پېښ سوی.

د پورته بیان په کولو دا نتیجې ته رسېږو چي د نن انسان په خپل طبیعي او بندګي رسالت کي ناکامه سوی دئ. زه فکر نه کوم چي انسان، د دې دومره ترقۍ سره سره، توانېدلی وي، چي حتی د کوچنیو مېږیانو د نظم، عدالت، ډیسپلین، یووالي، ورورولۍ، هماهنګۍ، خواریکښۍ او قوت (یو مېږی کولای سي تر خان ۵۰ چنده وزن پر دېوال په خوله پورته کړي) پېښې لا وکړي، نور مخلوقات به هلته پرېږدو. حیوان بیا څکه کامیابه دئ، چي خپل رسالت ئې پېژندلی او په ټینګه پر خپل قانون روان دئ. انسان چي د دې دنیا په خلافت مامور سوی دئ طبعاً ټول اړین ابزار هم ورکول سوي دي او لاره هم ورښوول سوې ده. خو ده له دغو امتیازونو څخه سوء استفاده کړې ده، پر غلطه لار پر مخ تللی دئ او خپل ټاکلي معراج ته اصلاً نه دئ رسېدلی.

[کاشکي هغي ګیدړي هم زما دا نوشته لوستلای سوای]



ليکوال : څېړندوي رفيع الله نيازي /ډيلي

# د اردو ژبي پيدايښت
# او ادبي تاريخ ته يوه ځغلنده کتنه

اردو ژبه که څه هم د ژبو د خپلوۍ پر بنسټ د برصغير يعني پخواني هند او پاکستان له لرغونو ژبو سره تړلې ده، خو له دې ژبي څخه د وقار، عزت او ادبي ژبي په جوړولو کي د دغي سيمي مسلمانانو مهم رول لوبولی دئ. دا ژبه د خپل جوړښت په لومړنيو وختونو کي له مسلمانانو سره د پخواني هندوستان له شمال يعني سند او پنجاب څخه جنوب لور گجرات او دکن ته سفرونه کړي دي.

په همدغو ځايونو کي د اردو ادب لومړني تخليقي اثار رامنځته شول، چي بيا وروسته دا ژبه په اگره، لکنهو او ډيلي کي هم دود شوه په ۱۹۴۷م کال کي چي کله انگرېزان له دې سيمي ووتل نو اردو ژبه بېرته پنجاب او سند ته راستنه شوه، خو په هندوستان کي يې هم په زړه پوري روايات او روښانه تاريخ پر ښنود. د برصغير په پاکستان او هندوستان کي د اردو ژبي پرمختگ د دغي سيمي له تاريخي، کلتوري او ټولنيز ژوند سره تړلی دئ. د دې له پاره، چي په تاريخي شاليد ئې وپوهېږو نو اړينه ده، چي د دې سيمي له سياسي او ټولنيز تاريخ سره هم لږ ډېر اشنا شو.

"د پاکستان، هندوستان او بنگال لرغونی تاريخ په تياره کي ډوب دئ، له لرغونو اثارو څخه داسي معلومېږي، چي د دې ملک لرغوني وگړي شل پنځه ويشت زره کاله پخوا د اوسني پاکستان د راولپنډۍ په سيمه کي د (سوا) رود پر غاړه او د اوسني هندوستان په ځينو نورو سيمو کي خواره واره مېشت ول. له (دراوړو) نه وړاندي په مرکزي هند کي د يوه

بل تورپوستي نسل د ژوندانه او دغلته د ژوند ژواک تېرولو اثار هم شته، دغو تورپوستو خلکو غښي شونډې او نبغ نبغ سيده ويښتان درلودل، خو پزې ئې چيټې وې. دغه خلک لرغوني استرلياېي نسل وو، چې له نيوزيلانډ نه تر پنجاب پورې خواره شوي ول. له اريايانو نه زرګونه کاله وړاندې د روم د بحيرې د ساحلي غاړې يو نسل هم هندوستان ته راغلی، چې له استرلياېي نسل سره ئې د ټکر بيا يو ځای والي له امله په نتيجه کې (دراوړي) نسل پيدا شو. له ميلاده درې زره کاله وړاندې دغه نسل په سند سيمه کې خپل کلتوري او ټولنيز نظام جوړ کړ، چې خپله ژبه ئې هم درلوده او اوصول او قواعد ئې هم درلودل. دغه ژبه له ځينو سرسري بدلونونو سره په بېلابېلو نومونو د ملک په بېلابېلو سيمو کې پرې خبرې کېدې. يو نيم زر کاله له ميلاد دمخه له بېلابېلو لارو دغه خلک هندوستان ته راغلل او لومړنی ټکر ئې په شمال کې له (دراوړو) سره وشو. دراوړو ئې مقابله و نه شوه کړای نو دغه دراوړ قبيله د هندوستان جنوبي سيمو ته ولاړل او خپله سيمه ييزه شته ژبه ئې هم له ځانه سره يووړه. په شما ل کې د دغو دراوړو قبيلو پاته شونو وګرو خپله ژبه هېره نه کړه او د خامو موادو په توګه ئې وساتله"[۱].

تر دې وروسته دغې سيمې ته اريايان راغلل او د سند سيمه ئې ونيوله، خو ډېر ژر د دې سيمې اغيز هغوی مغلوب کړل.

په ۳۲۷ قبل الميلاد کې يونانيانو هم پر برصغير يعنې اوسني هند بريد کړی، خو ډېر اغېز ئې نه درلود، خو پر هندوستان د مسلمانانو بريدونه دغلته راتګ او پر ټول هندوستان تر ډېرې مودې پورې واکمني دومره مهمه خبره او نقطه ده، چې نن سبا د دغې سيمې د ټولنيز نظام، سياسي او کلتوري ژوند ځېړنه ځېړونکي د مسلمانانو امپراتورانو د زمانې په رڼا کې ځېړي.

پخواني برصغير او اوسنی هند، پاکستان او بنګال د خپلو طبيعي زېرمو د درلودو له امله له ډېره پخوا راهيسې د نورو سيمو د اولسونو او سوداګرو پام وراړول وو.

"له هنديانو سره د عربو د سوداګرۍ لړۍ د حضرت محمد (ص) له زمانې دمخه پيل شوې ده. کله چې مسلمانان دغې سيمې ته په لومړيو وختونو کې راغلل نو سوداګريزې موخې ئې درلودې.

د لومړي ځل له پاره په ۶۴۴ عيسوي کال کې مسلمانانو سند فتحه کړ. په ۷۱۲ ميلادي کال کې د محمد بن قاسم له فتحو سره د دې سيمې پر يوه برخه د مسلمانانو واکمني پيل شوه او د سلطان محمود غزنوي له فتوحاتو وروسته د مسلمانانو واکمني تر منځني هندوستان پورې ورسېده "[۲].

په دوولسمه هجري پېړۍ کې معزالدين غوري تر منګير پورې اسلامي سلطنت جوړ کړ، دا هغه مهال وو چې لاهور د اسلامي کلتور مرکز وو، بيا علاوالدين غلجي په ۱۲۹۴ هجري کې دکن فتح کړ، خو بغاوتونه هم ورسره روان ول. د دغو بغاوتونو د له منځه وړو له پاره په دغه سيمه کې د هغه مهال واکمن محمد تغلق خپل پايتخت دولت نګر ته انتقال کړ، چې له دې کار سره له مسلمانانو سره د هغوی ژبه هم جنوب لور ته ولاړه همدغه مهال دا ردو ژبې ادبي حيثيت تر لاسه کول پيل شول.

"د امير تېمور له بريد سره ډېر خلک ګجرات پر لور ولاړل او اردو ژبه ئې هم له خان سره يوړه. د پنځلسمې پېړۍ په لومړيو کلونو

کې د دغې سیمې حکومت ساداتو کورنۍ ته په لاس ورغی، چې ورسره په دغه وخت کې په دکن کې ډېر عالمان، ادیبان، فضلا او مشایخ پیدا شول او دکن د علم او ادب خانګو شوه او بیا په ۱۵۲۶ هجري کال کې ظهیرالدین بابر په ډیلي کې مغولي سلطنت جوړ کړ[۳]".

تر بابر وروسته همایون د څه مودې له پاره واکمن وو، خو کله چې د اکبر واکمنې راغله نو په دغه دوره کې پر هندوستاني کلتور، ایراني کلتور او فارسي ژبه ډېره اغېزه کوي. د عرفي او نظیري په څېر شاعران او د عبدالصمد په څېر انځورګران هندوستان ته راغلل، تر ده وروسته شاه جهان راغی او د تاج محل په څېر ډالۍ ئې هندوستان ته ورکړه. بیا اورنګزېب راغی، چې ډېره موده ئې له افغانانو، راجپوتانو او مرهټانو او د دکن له باغي حکمرانانو سره په مقابلو تېره کړه، پر دکن د بریدنو په جریان کې ډېر مسلمانان هلته مېشت شول، چې د اردو ژبې په مشمره کولو کې ئې ډېره مرسته وکړه، د اورنګزېب په واکمنۍ کې عالمګیري فتاوا ولیکل شوه، رحیمیه مدرسه جوړه شوه او د شاه ولي الله په څېر عالمان پیدا شول. د اورنګزېب تر وفات وروسته مغل دغلنه کاواکه کېږي او انګرېزان حاکم کېږي.

"دغه مهال د دلي دکني په نامه یوه تن فارسي مضامین د اردو ژبې په چوکاټ کې لیکل پیل کړل، د خواجه میر درد، یقین او تابان په څېر شاعران پیدا شول او د نوي اردو ژبې بنسټ ئې کېښېښود[۴]".

تر دې وروسته د شاه ولي الله بچیانو د قران کریم ژباړې وکړې او لمسي ئې شاه اسماعیل په اردو نثر کې د تقویت الایمان اثر لیکلی دی.

بیا د انګرېزانو له وتو سره په ۱۹۴۷ م کال کې د برصغیر پر یوې مهمې سیمې د اسلام په نامه یو هېواد جوړېږي، اردو ئې ملي ژبه کېږي او نن سبا په پاکستان کې اردو ژبه د دغه هېواد ملي ژبه ده. تر دې ځایه موږ د هغې سیمې په تاریخي بېکګروند وغږېدو، چې اردو ژبه او ادبیات پکښې ایجاد شوي دي.

## د اردو کلیمې شالید:

"اردو د ترکي ژبې کلیمه ده، کله چې چنګېز د نړۍ د لاندې کولو په موخه لښکرکښۍ وکړې نو ورسره دا کلیمه بېلابېلو اسیايي او اروپايي ژبو ته ورننوته. خو هندوستان ته دا کلیمه د مغلو په واسطه مغلي واکمنانو ور وړې ده[۵]".

د اکبر مغلي پاچا د واکمنۍ پر مهال دا کلیمه نوره هم دود شوه او د اردوی معلی، اردو حضرت، اردوی لشکر په څېر نورې ترکیبي کلیمې ترې جوړې شوې. د اورنګزېب د واکمنۍ پر مهال تریته نورې نوې ترکیبي کلیمې: لکه: اردوبیګي، قاضي اردو، اردوبازار او نورې هم جوړې شوې. اردو په ترکي ژبه کې لښکر، پوځ، حکومتي دفاعي قوې ته ویل کېږي.

## د اردو ژبې پیدایښت:

د اردو ژبې د پیدایښت په اړه خورا ډېر نظریات شته. ځینې پوهانو ئې یوه ګډوله ژبه بولي او ځینې نور ئې په سیمه کې د لرغونو اریايي ژبو زېږنده او یوه ځانګه بولي.

"د اردو ژبې یو نوموتی لیکوال او څېړونکی ډاکټر سهیل بخاري په خپل اثر اردو کې کهاني کې ریګ ویدا د اردو ژبې د تاریخ لومړنۍ نښې بولي[۶]".

د کوزې پښتونخوا پیاوړی ژبپوهاند ډاکټر خالد خان خټک په خپل یوه اثر کې وایي، چې: "د اردو ژبې په اړه ټولو نظریاتو ته په کتو سره موږ دې نتیجې ته رسېږو، چې اردو کومه بهرنۍ ژبه نه ده او نه هم د مختلفو ژبو ګډوله ده، بلکې دا د اصلي اریایي ژبې له اریک ځانګي څخه زېږېدلې ... د وخت په تېرېدو بېلابېل نومونه خپل کړي، چا هندي، چا هندویي او چا هندوستاني نوم ورته ورکړی دئ، د دکني او ګجري په نومونو هم یاده شوې ده، خو ژبه هماغه ده د سیمه ییزو او بهرنیو اغېزو په نتیجه کې ترې ننۍ اردو جوړه شوې ده[٧]".

یو بل اردو ژبې لیکوال او څېړونکی ډاکټر فرمان فتحپوري وایي، چې: "د جوړښت له مخې اردو ژبه یوه مخلوطه ژبه ده[٨]".

موږ وړاندې دې ته اشاره وکړه، چې د اردو ژبې د پیدایښت په اړه نظریات سره ورته نه دي یو شمېر نور پوهان بیا وایي، چې:

"اردو ژبه په هند کې د اسلامي فرهنګ او کولتور یوه غوره مېوه او لاس ته راوړنه ده، مسلمان فاتحان چې کله برصغیر ته ولاړل نو له ځان سره ئې عربي، فارسي او ترکي ژبې یوورې. هغه مهال په دغه سیمه کې داریایانو مقدسې ژبې سنسکریت له عوامو سره مخه ښه کوله، خو له دې سره سره ځینې داسي ویناوې او کلیمې ئې دود وې، چې د دې سیمې پخوانیو اوسېدونکو د خپلو ټولنیزو اړتیاوو له پاره ښې ډېرې کارولې. د دغو کلیمو تر منځ نحوي او صرفي مماثلت هم وو، اریایانو ورته په سپکه سترګه کتل، خو مسلمانان ورته په احترام قایل شول نه یوازې دا چې ویې منلې بلکې کار ئې پرې وکړ اسانتیاوې ئې ورته برابرې کړې راغونډې ئې کړې او د نوي زمانې اردو ژبه ئې ترې جوړه کړه[٩]".

د اردو ژبې یوه پیاوړی لیکوال شیخ محمد اکرام په خپل اثر رود کوثر کې کښلي: "د اورنګزېب له مړینې په یونیم سلو کالو کې دننه اردو علمي حلقو ته ورننوته یوه داسې ادبي ژبه ترې جوړه شوه، چې په هندوستان کې د فارسي ژبې ځایناستې شوه[١٠]".

د اردو ژبې د لغاتو زېرمه، نحوي او صرفي قواعد، توري او غږونه ئې له نورو ژبو څخه په پور اخیستل شوي دي. صوتونه ئې هم له سیمه ییزو او ناسیمه ییزو ژبو څخه اخیستل شوي، خو له دې هر څه سره سره اوس دا یوه منل شوې ژبه ده او د دنیا په ډېرو ځایونو کې ئې ویونکي خپاره دي.

ډاکټر ګلګرا ټسټ وایي، چې پر هندوستان د تېمور له برید سره د اردو ژبې بنسټ کښېښول شو، سعید مارهروي ویلي، چې دا ژبه د قطب الدین ایبک په زمانه کې په بهاشاه برج کې د فارسي ژبې له ګډولې څخه جوړه شوه، سجاد ظهیر ئې د سلطان محمود له زمانې سره تړلې بولي ډاکټر موهن سنګ هم په دې نظر دئ. حافظ محمود شیراني وایي چې پر سند باندې د محمد بن قاسم له برید سره سم اردو ژبه پیدا شوه.

که څه هم دا نظریات مختلف دي، خو یو شی چې ټول څېړونکي پرې اتحاد لري وایي، چې اردو ژبه مسلمانانو جوړه کړې او دا ژبه د سیمه ییزو ژبو او خلکو د ګډون په نتیجه کې منځته راغلې ده، خو د اصلي ټاټوبي په اړه ئې هم څېړونکي یوه خوله نه دي ځیني وایي چې د لومړي ځل له پاره په پنجاب کې رامنځته شوې، ځیني وایي په سند کې منځته راغلې، خو یو شمېر نور پوهان وایي، چې د اردو ژبې خام مواد او لومړني ځرکونه په س د

او پنجاب کي پيل شوي په شاه جهان اباد سيمه کې پر مخ ولاړه په دکن کي ئې د ادبياتو پنځونه پيل شوه او بيا د هندوستان شمالي سيمو ته ورسېده، چي په کلاسيک ډول ئې هلته ارايش او زيبايش وشو او په ۱۹۴۷ م کال له نوو سياسي بدلونونو سره دا ژبه بيرته خپل حقيقي وطن پنجاب او سند ته بېرته راغله.

**اردو رسم الخط**:

ژبه روح او رسم الخط ئې جسم يا باډي وي تر هغې چي دا دواړه په خپلو کي سره يو خای نه شي نو غږونه او معناوي نه رامنځته کېږي.

په تاريخي لحاظ په پخواني برصغير کي چي له شپږمي پېړۍ راهيسي کوم ليکدود دود وو هغه د اشوکا په ډبرليکونو کي برهمي او خروشتي ليکدود دئ او ديوانگري ليکدود له برهمي ليکدود څخه اخيستل شوی دئ، چي "خروشتي هم له ارامي څخه اخستل شوی او ارامي خط د دنيا تر ټولو مخکني ليکنی خط دئ، چي درې زره کاله وړاندي له ميلاده ايجاد شوی دئ"[11].

ايراني حاکمانو دغه ليکدود سند ته ورسوه، د محمد بن قاسم په زمانه کي عربي ليکدود دغي سيمي ته ورسېد نو لکه څنگه چي عربي ليکدود هم له ارامي څخه اخيستل شوی ليکدود دئ نو د سيمي ژبو هم په ډېري اسانۍ سره قبول کړ.

د اردو ژبي د ټورو الفبايي يعني هجايي سيسيتم داسي دئ، چي د اريايي او سامي دواړو ژبو له کورنۍ څخه ئې توري اخيستي دي، چي له ډلي ئې دلته د سنسکريت، فارسي او عربي ژبو يادونه کولای شو.

**اردو ادبيات**:

د اردو ژبي او ادب د قسمت ستوری که څه هم د مسلمانو واکمنانو په وخت کي وځلېد، خو د دې ژبي په لومړني او ابتدايي ادب کي د مسلمانو واکمنانو ونډه نه تر سترگو کېږي، ځکه چي دغلته د مغلو ژبه فارسي وه او دربار هم دغي ژبي نيولی وو، نو په دغه دور کي اردو د دربار پر ځای د کلي او کوڅې ژبه وه، د مغلو په دربار کي ئې حيثيت نه درلود خو د دروېشانو، صوفيانو او عارفانو په دربارونو کي د عزت ژبه وه. د مغلو له زوال سره فارسي ژبه هم له زوال سره مخامخ شوه او پر ځای ئې دا له درباره شړل شوې ژبه اردو پر عوامو سربېره د خواصو پر زړونو هم د واکمنۍ دور پيل کړ.

د اردو ژبي د دودېدو بنسټ لومړنۍ ډبره خواجه معين الدين چشتي اجميري چي په ۱۲۳۵ هجري کې وفات شوی ايښې ده. نوموړي هندوستان ته په ورتگ سره په اجمير کي د تبليغ مرکز جوړ کړ او د هغه مهال په هندي ژبه، چي بيا ترې اوسنۍ اردو وزېږېده خلکو ته تبليغ او درس ورکاوه، خو په دې برخه کي کوم ليکلی اثر نه لري يوازي وينايېز دودېدل وو د دغې ژبي.

"خواجه فريدالدين مسعود شکر گنج (متوفی ۱۲۶۵)، چي د پنجاب په پاک پټن سيمه کي ئې ژوند کاوه د راحت القلوب او اسرارالاولياء په نامه دوه اثره لري. په ادبي لحاظ خواجه فريد ځکه د اهميت وړ دئ، چي هغه په اردو ژبه کي د شعر تخليق وکړ[12]".

د يادونې وړ ده، چي دا دواړه اثار ئې ديني اړخ لري او اشعار ئې هم د گوتو په شمېر څو بيتونه پاته دي، چي د ساري په توگه ئې موږ يو بيت دلته راخيستی دئ:

وقت سحر وقت مـــناجات هې
خېز در ان وقت کې بر کات هې

له دغو صوفيانو سره د امير خسرو، شيخ برهان الدين غريب، مظفر بلخي، خواجه بنده

نواز ګیسو دراز، شاه میران جی شمس العشاق، شیخ بهارالدین باجن، سید محمد جونپوري، شیخ عبدالقدوس ګنګوهي، شاه علي جیوګام دهاني، شیخ برهان الدین جانم، شیخ خوب محمد چشتي او نورو نومونه د یادونې وړ دي، چې د اردو ژبې په دودولو ئې ونډه درلوده.

## د اردو ادب دودي بېلابېلي سیمي:

اردو ادب د ادبي دورو په څېر نه دئ څېړل شوی او د دې خبرې دلیل هم دا دئ، چې یوه نوې جوړ شوې ژبه ده، چې عمر ئې تر څو پېړیو نه اوړي، خو اردو ژبو څېړونکو اردو ادبیات د سیمو په اډانه کي داسي څېړلي دي، چې په ترتیب سره لومړی په کومه سیمه کي کوم ادبي فورم او ډول د چا له لوري رامنځته شو او دا سیمي په ټوله کي پر دوو برخو وېشل کېږي، شمالي هندوستان یعني پنجاب او سند او جنوبي هندوستان په ترتیب سره دکن، بېجاپور، لکنهو او نوري سیمي، چې د وخت په تېرېدو تر نه پوري پکښې اردو ژبه د ادبیاتو په بېلابېلو فورمونو کي نړدې د معراج تر پوړۍ پوري رسېدلي او په دې برخه کي د اردو ادب د ودي له پاره ډېر کار هم روان دئ. له بده مرغه په دې لنډه او تنګه لیکنه کي به خورا ګرانه وي، چې په هر اړخیز ډول پر اردو ادبیاتو وغږېږو، نو له همدغه امله په ډېر لنډیز سره ئې له هري برخي مازي د پلو په پورته کولو بسنه کوو او پیل ئې هم له شمالي هندوستان څخه کوو:

## شمالي هندوستان:

تر دې دمه موږ د اردو ژبي پر دودېدو وغږېدو، چې ځیني بیلګې ئې اوس شته، خو تر دې دمه په اردو ژبه کي لومړنی د دیوان خاوند شاعر مسعود سعد سلمان دئ د اردو ژبې پخوانیو او اوسنیو څېړونکو په اتفاق سره دا ویلي دي، چې دی د اردو ژبي لومړنی صاحب دېوان شاعر دئ. "مسعود سعد سلمان د اوسني پاکستان د لاهور اوسېدونکی وو[۱۳]".

په شمالي هندوستان کي پر سعد سلمان سربېره نور شاعران، لکه : قطبن، شیخ جمالي کنبوه، محمد افضل، جعفرز ټلي، عبدالواسع هانسوي، دلشاد پسروري او شاکر اټکی نومونه د یادونې وړ دي. په شمالي هندوستان کي په اردو ژبه لومړني لیکل شوي نثري اثار هم تر دې دمه ورک دي، خو اردو ژبی لیکوال محمد حسین ازاد کاږي، چې: "د محمدشاه په زمانه کي (۱۷۳۲م) کي یو څوک وو، چې فضلي تخلص ئې درلود د (لسو مجلسونو) په نوم یو اثر ئې لیکلی، چې د هغې په سریزه کي ئې د دغه اثر د لیکلو دلیل لیکلی او په غالب ګومان سره چې دا د اردو ژبي لومړنی تصنیف دئ[۱۴]".

حکیم شمس الله قادري هم پورتنی استدلال منلی او دا اثر ئې په اردو ژبه کي لومړنی نثري لیکل شوی اثر ګڼلی دئ.

له دې خبري دا څرګندېږي، چې تر دوولسمي هجري پېړۍ وړاندي په اردو ژبه کي نثري اثار نه دي موندل شوي او په تېرو مخونو کي مو هم دا ولوستل، چې د خواجه معین الدین اجمیري تر زمانې وړاندي اردو ژبه د وینا او ګړهار ژبه وه.

"د اکبر په زمانه کي چي اسلامي احکامات جاري شول نو سخت مخالفت ئې وشو او د جونپور قاضي ملا محمد یزدي فتوا ورکړه، چې پاچا بې دینه شوی دئ[۱۵]".

"د مخالفت دغه مذهبي تحریک په پښتونخوا کي هم زور واخیست، علماوو داسي اثار ولیکل، چي عوام او خواص ټول ئې مخاطبان ول. د دغو خلکو په ډله کي پیر

روښان (۱۵۷۲) ځکه د اهمیت وړ دئ، چي هغه په خپل اثر خیرالبیان کي دیني مطالب په عربي، فارسي، پښتو او اردو ژبو کي بیان کړي دي[۱۶]".

"ډاکټر جمیل جالبي په تاریخي او ژبني لحاظ خیرالبیان ته په معمولي اهمیت قایل دئ، خو دا ئې په شمالي هند کي د دې دور د نثر لومړنی تصنیف منلی دئ"، چي په لسمه هجري پېړۍ کي لیکل شوی دئ[۱۷].

**جنوبي هندوستان:**

په جنوبي هندوستان کي دکن، بېجاپور او ګولګنډه هغه سیمي دي، چي د نظم او نثر په برخه کي پکښې په اردو ادبیاتو کي پنځوني شوي، چي له ډلي ئې د فخرالدین نظامي دکني، اشرف بیاباني، خواجه محمد دهدار فاني، قطب زاري، مرزا محمد نعیم، محمد امین ایاغي، ملا خیالي، سید محمود، فېروز بیدري، محمد قلي قطب شاه، شیخ احمد دکني، ملاوجهي، سلطان محمد قطب شاه، غواصي، عبدالله قطب شاه، ابن نشاطي نومونه د یادونې وړ دي.

"د اردو ژبي یوې پیاوړي لیکوالي ډاکټري رضیې سلطاني «جنونیه» رساله چي په ۱۳۹۲ هـ کي لیکل شوې د اردو ژبي پخوانی کتاب حساب کړی دئ او مصنف ئې ورته محمد خان روزي ښوولی دئ[۱۸]".

ډاکټره رضیه وایي، چي جنونیه رساله کي څو اردو مقولې دي، چي په فارسي ژبه تشریح شوي دي، خو د اولسو مخونو په دې رساله کي یوازي نهه مقولې اردو دي او نوري ئې په فارسي نو په دې وجه دا د اردو ژبي تصنیف ګڼل کېږي". خو نوو څېړنو دا خبره روښانه کړه، چي د سید یوسف حسیني شاه راجو، چي په (۳۱–۱۳۳۰) کي وفات شوی د ده رساله د اردو ژبي لومړۍ نثري رساله ده[۱۹]".

له دې سره په څنګ کي شیخ عین الدین ګنج العلم، سید محمد حسیني خواجه بنده، نواز ګیسو دراز، شمس العشاق میران جي، او امین الدین اعلی نور نثر لیکونکي دي.

تر دې وروسته په شمالي هندوستان او جنوبي هندوستان کي د نظم او نثر په برخه کي ډېر کار شوی، چي پر سیمه ییزو لیکوالو سربېره ختیځپوهانو ئې هم په اړه لیکني کړي دي.

تر دې وروسته د اردو ادبیاتو په یوه بل مرکز لکنهو کي هم د اتلسمي پېړۍ په جریان کي ادبیات ایجادیږي، دغلته د شیخ یحیی امان، قلندربخش جرات، شیخ غلام همداني مصحفي، انشا الله خان انشا، شیخ امام بخش ناسخ، خواجه حیدرعلي اتش او د ځینو نورو نومونه د یادوني وړ دي.

په اردو ژبه کي پر نظمي او نثري ایجاداتو سربېره په ترتیب سره لومړنی د قران کریم تفسیر د شاه رفیع الدین دئ، چي په ۱۷۸۵م کي بشپړ شوی دئ. لومړنی تذکره لیکونکی خواجه میر درد وو، چي په اتلسمه پېړۍ کي ئې لیکلې، لومړنی ډرامه لیکونکی واجد علي شاه وو، چي په ۱۸۴۳ کي ئې لیکلې وه، لومړنی یونلیک لیکونکی یوسف خان کمبل پوش، چي له کلکتې څخه هندوستان پورې سفر په اړه په ۳۸ـ ۱۸۳۷ کي لیکل شوی. په اردو ژبه کي د ناول لیکني لومړنی بنسټ نذیراحمد ډهلوي ایښی او لومړنۍ ښځینه ناول لیکونکې رشیده النسا بېګم، چي په ۱۹۳۱ کي وفات شوې ده او د ناول نوم یې هم (اصلاح النسا) وو، لومړنی ژوندلیک لیکونکی محمدجعفر تهانسیري، چي په ۱۹۰۵ کي وفات شوی دئ.

د اردو ژبې لومړنۍ افسانه یا کیسه لیکونکی سجاد حیدر یلدام او پریم چند دي.

مولوي عبدالحی لومړنی سړی دئ، چې د گل رعنا په نوم ئې اردو ادبي تاریخ لیکلی.

تر دې ځایه چې کوم کارونه شوي د پاکستان له جوړېدو د مخه ول.

هایکو اردو ژبې ته له چینایي ژبې څخه راغلې او د ژباړې له لاري ئې بنسټ ایښودونکی ظفر اقبال د (لیل و نهار) په نامه هایکو ژباړلي دي.

"په اردو ژبه کې لومړنی ازاد غزل ویونکی مظهر امام دئ، چې په ۱۹۶۱م کې ئې په اردو ژبه کې دود کړی دئ. لومړني نعت لیکونکي پکښې علامه اقبال، محمد علي جوهر، ظفرعلي او نور دي[۲۰]".

په اردو ژبه کې لومړنی راپورتاژ لیکونکی کرشن چند دئ او په دې توگه اردو ژبه او ادبیات ئې نن سبا د پرمختگ پر لور روان دي او په هره برخه کې ئې ادبي ایجادات او پنځوني کېږي.

## له اردو ژبې سره د پښتو ژبې ژبنۍ اړیکې:

موږ ته څرگنده ده، چې د ژبو د کورني وېش له مخې پښتو ژبه د اندو اروپایي کورنۍ د اریک څانگې د ایراني ښاخ په شمال ختیزې ډلگۍ پورې تړلې ژبه ده.

اردو ژبه هم د ژبو د کورنۍ له مخې د اندو اروپایي کورنۍ د اریک څانگې د ایرایي ښاخ له ویدي، سنسکریت څخه زېږېدلې یا لږ تر لږه د ژبني جوړښت اړانه ئې لکه د نورو سنسکریتي ژبو په څېر ده او د نورو ژبو اغېز هم پرې لیدل کېږي او بل دا چې دا ژبه په جغرافیوي لحاظ په هغه سیمه کې منځته راغله، چې د سنسکرېت ژبې سیمه وه نو د اردو او پښتو ژبې لومړنۍ ژبنۍ اړیکه دا ده، چې دواړې د اندواروپایي کورنۍ ژبې ئې.

که څه هم سنسکریت او په اوسني هندوستان کې نوري زېږېدلي ژبې په دیواناگري رسم الخط لیکل کېږي، خو اردو او ځیني نوري هغه ژبې چې مسلمانان پرې خبري کوي سیمي ته د عربو فاتحانو او نورو هغو مسلمانانو په ورتگ سره اردو او نورو ژبو لکه پنجابي، سندهي، گجراتي، کشمیري او نورو عربي رسم الخط غوره کړ، نو په لږ او ډېر توپیر د اردو او پښتو ژبې لیکنی رسم الخط عربي دئ او د الفبا ډېر توري، لکه الف، ب، ت، ټ، ث، پ، ج، چ، ح، خ، د، ذ، ډ، ر، ز، ړ، ژ، س، ش، ص، ض، ط، ظ، ع، غ، ف، ق، ک، گ، ل، م، ن، ڼ، و، ه او ی ئې سره شریک دي او دا د دواړو ژبو تر منځ یوه بله فونولوژیکي او فونیمیکي ژبنۍ اړیکه ده.

د گاونډو ژبو تر منځ د بېلابېلو دلایلو له امله په الفاظو او کلماتو کې صوتي بدلونونه راځي، چې په دې لړ کې په پښتو او اردو ژبه کې هم دا چاره تر سره شوې او دلته ترې د ساري په توگه ځیني رااخلو.

| پښتو | اردو |
|---|---|
| مور | ما |
| نوم | نام |
| نوی | نیا |
| ستوری | ستاره |
| سپین | سفېد |
| خسر | سسر |
| ژبه | زبان |
| دوه | دو |
| پنځه | پنجه |
| لس | دس |
| سل | سو |
| پلیت | پلید |

خر : خر
پرده : پړده
روپۍ : روپیه

د جنس، عدد او حالت له مخې هم سره ورته والی لري اردو او پښتو ژبه په خپلو کې سره نحوي اړیکي هم لري، په پښتو کې هم جنس پر دوه ډوله دئ په اردو کې ؛ لکه: سړی راغی مرد ایا ښځه راغله، عورت ایي. سړي راغلل ادمي ایی، ښځې راغلې عورتې اییی.

د افعالو په برخه کې هم سره نږدې دي په لاندې مثالونو کې د لازمي او متعدي بېلګې دي؛

احمد ځي. احمد چلتا هی.

احمد محمود وواهه. احمد نې محمود کو مارا.

د جملو جوړښت ئې هم یو ډول دئ؛ لکه: محمودالحسن عالم دئ. محمودالحسن عالم هی. که پلټنه وشي ښایي دې ته ورته نوري بیلګې او ژبنۍ اړیکي ولیدلې شي.

**اخځلیکونه:**


۱. ډاکټر انور سدید: اردو ادب کي مختصر تاریخ پنځم چاپ، عزیز بک ډپو لاهور، ۲۰۰۶ م، ۳۵ – ۳۴ مخ.
۲. رومیلاتا پر، ای هیسټري اف انډیا (انګلیسي) پنګوین، لندن، ۱۹۷۰م، ۲۳۲ مخ.
۳. فیاض محمود، دی سټوري اف انډو پاکستان (انګلیسي)، اکسفورډ یونیورسیټي، ۱۹۶۳م، ۱۳۴ مخ.
۴. شیخ محمد اکرم، رود کوثر، فېروز سنز، لاهور، ۱۹۵۷م، ۶۳۲مخ.
۵. مقالات حافظ محمود شیراني، لومړی ټوک، مجلس ترقي ادب، لاهور ۱۹۶۶م، ۱۴ مخ.
۶. ډاکټر سهیل بخاری، اردو کي کهاني، مکتبه عالیه، لاهور ۱۹۷۵م، ۷مخ.
۷. ډاکټر خالد خان خټک، سندهي، پشتو، اردو کي لساني روابط، پښتو اکېډمي پېښاور، ۲۰۰۷ز کال، ۹۳-۹۴ مخونه.
۸. ډاکټر فرمان فتح پوري، هندي اردو تنازع، ۱۹۷۷م، ۱۹ مخ.
۹. ډاکټر انور سدید: اردو ادب کي مختصر تاریخ پنځم چاپ، عزیز بک ډپو لاهور، ۲۰۰۶ ز کال، ۳۳ مخ.
۱۰. شیخ محمد اکرام، رود کوثر، ۱۹۵۸ز کال لاهور، ۶۵۴مخ.
۱۱. سید محمد سلیم، اردو رسم الخط، مقتدره قومي زبان اسلام اباد، ۱۹۸۱م.
۱۲. شیخ محمد اکرام، اب کوثر، ۱۹۶۵ م کال لاهور، ۲۲۵ مخ.
۱۳. ډاکټر جمیل جالبی، تاریخ ادب اردو، مجلس ترقي ادب لاهور، ۱۹۷۵م، ۲۳ مخ.
۱۴. محمد حسین ازاد، اب حیات، سنګ میل پبلي کېشنز، لاهور، ۱۹۷۰م، ۱۵ مخ.
۱۵. شیخ محمد اکرم، رود کوثر، ۱۹۵۸ ز کال لاهور، ۱۰۱ مخ.
۱۶. پیر روښان، خیر البیان، (مرتبه عبدالقدوس هاشمي) پېښور، ۱۹۶۷.
۱۷. ډاکټر جمیل جالبي، تاریخ ادب اردو، لومړی ټوک، ۵۸ مخ.
۱۸. ډاکټر جمیل جالبي، تاریخ ادب اردو، لومړی ټوک، ۵۸مخ.
۱۹. ډاکټر رضیه سلطانه، اردو نثر کا اغاز و ارتقا، کریم سنز، کراچی، ۱۹۷۸م، ۵۷مخ.
۲۰. علیګړه، تاریخ ادب اردو، ۱۴۶ مخ.



بشیراحمد بشارت

# لومړی لیدنه تر وروستۍ لیدنې پورې

توریال لوحه لیکنه، چې د خاد په کوڅه کې موقعیت لري، د ورځې تقریباً (۹ - ۱۰) بجې به وې چې هلته ورغلم. محمدیار صاحب د پسخانې په خوله کې په یوه لوحه اخته وو او یو بل ډنګری ځوان د دوکان د دروازې خوا ته پر چوکۍ ناست وو. ما د هغه او محمدیار سره د لاس روغبړ وکړ. تر ما دستې وروسته یو بل نفر راغی، زموږ درو سره ئې روغبړ وکړ. محمدیار زه او هغه ډنګری ځوان ورته معرفي کړو. ول دی بشیراحمد بشارت دئ او هغه عبدالقدیم پتیال دئ او موږ ته ئې وویل: دی صدیق شاه صدیق دئ. دا هغه وخت وو چې طالب رژیم حاکم وو.

صدیق شاه تر شعر او شاعرۍ پورې بحث یاد کړ او وې ویل، چې: شاعرانو خو دغه د نرګس ګل له ډېرو یادولو څخه اوس ښځې له ریښو وکښي. موږ درو سرو پر وخندل. بیا ئې محمدیار ته وویل چې هغه زما شعر دې راجوړ کړی دئ؟ محمدیار ورته وویل: والله که خلاص سوی یم، خو د بیا جوړولو وعده ئې ورسره وکړه. تر څه ځنډ وروسته صدیق شاه ولاړی او پر محمدیار ئې ټینګار وکی چې حتماً ئې راجوړ که.

د ده تر وتلو وروسته محمدیار موږ ته مخ راواړاوه او وې ویل: دی چې وای د شعر جوړول دوندې آسانه دي لکه د ختو څخه چې یو شی جوړ کې او پر دېوال ئې ومښلوې.

دا چې په هغه وخت کې ږغیزه رسنۍ یوازې محلي راډیو وه او چاپي رسنۍ طلوع افغان وه د دغو رسنیو له لارې به مې کله کله شعرونه اورېدل او یا به مې لوستل، چې په هغو کې به مې کله د ښاغلي پتیال نوم او شعر اورېدی. خو دا لومړی لیدنه مو وروستۍ نه سوه، کله کله به مو د محمدیارصاحب په

دوکان او بازار کي سره لیدل.

د کرزي تر راتګ مخکي چي کوم وحشیانه بمبار شروع وو او د طالب رژیم وروستۍ د ګوتو په شمار شپې وې، یوه ورځ په ښار کي آوازه سوه چي د شهیدانو پر چوک ئې یو سړی په دار ځړولی دئ. زه هم نوموړي ته ورغلم که ګورم، چي یو ژړ ځوان په دار ځړېږي او پر ځیګر ئې پر سپین ټوکر تور خط نوشته وو.

ډېر خلک ئې پر شاوخوا راغرځېدلي ول. په دې حال کي د ښار فضا ګرد، غبار او د طیارو غرومبې نیولې وه، زه چي له دې صحنې څخه راووتم او د شمال خوا ته یو څه ولاړم، نو پټیال مي مخي ته راغی او تر پوښتني او ګروېږني وروسته ئې راته وویل:

دا سړی دي وپېژندی؟ دا خو عبدالله خیال دئ.

ما ورته وویل: یا هغه ما لیدلی دئ، دا هغه نه دئ. خو ده ټینګار وکړ چي والله که بل څوک دئ، بې له عبدالله خیاله. دا چي مي واورېدله ډېر افسوس مي وکړ. ما او پټیال پر هغه ځای خدای پاماني وکړه.

یوه ورځ د ده د خطاطۍ له دوکانه خبر سوم. نو زه او یو بل اندیوال ورغلو، دوکان ئې د اوسني فرهاد روغتون لاندي یو سوپ دئ په دې ځای کي وو. موږ چي ورغلو تر سترې مه سي وروسته مي ورته وویل: دا څنګه ګوښه ځای دي نیولی دئ؟ ده وویل پر سړک دوکان نه پیدا کېږي. ما ورته وویل خه ښه دئ ګیراک به ئې ژر پیدا کړي. ده وخندل، ول: زه کوښښ کوم چي دباندي دوکان پیدا کړم.

دې شناخت همداسي ادامه پیدا کړه، د نوي رژیم په راتګ سره مشاعرې او غونډې هم ډېرې په زور کي سوې. چي دا هم د لیدلو له پاره یو ښه چانس وو. کله چي دلته د محمدهوتک شپې لېسه شروع سوه زه هم خپلو پاته زده کړو ته وجوغېدم. یوه ورځ په رخصتي مي پټیال ولیدی د درس ویلو پوښتنه مي ځني وکړه، ده راته وویل: هو! زه هم دلې درس وایم، خو تر څو ورځو وروسته مي بیا په مخه رانه غلی.

د شهید عبدالمجید بابي تر مرګ وروسته مي له یوه ملګري څخه واروېدل چي پټیال د اطلاعاتو او کلتور رئیس سوی دئ. که رشتیا ووایم دې خبري چنداني خوند رانه کی. ځکه هغه مهال حالات ډېر ترینګلي وه. د



ده تر مقررۍ وروسته د کندهار د کليد راډيو په تالار کي فکر کوم اختريزه مشاعره وه، کله چي زه تالار ته ورغلم د پټيال په شمول ډېر ملګري لا دمخه راغلي وه. دی د دروازې پر مخامخ ناست وو، کله چي مي د غېږي روغبړ ورسره کاوه، نو مي په غوږ کي ورته وويل: چي په ډېر بد وخت کي دي دې کار ته زړه ښه کی. ده په جواب کي راته وويل: يو واري خو مو ورپوري وهلم اوس خو يوه پوښتنه هم نه راباندي کوی. کله چي ئې څنګته کښېنستم. بيا ئې راته وويل: په رياست کي ډېري ستونزي دي، چي له هغو څخه يو څه بېغمه سم ان شاء الله مجلسونه به سره کوو. ما هم ورته وويل: سمه ده.

يوه ورځ رياست ته ورغلم او سيخ سيده د ده کوټې ته ورغلم دروازه مي په نوک ورووهله، بيا مي نيم کښه خلاصه کړه، ورته ومي ويل رئيس صاحب! اجازه ده. د دې جملې په ويلو سره دی له چوکۍ څخه راولاړ سو او دا جمله ئې راته وويله: "سترګي مي روښانه" تر روغبړ وروسته ئې راته وويل: ياره! دا رئيس مه راته وايه! ما ورته وويل: اوس خو رئيس يې چاره نسته.

تر چايو چښلو وروسته مي د تلو ورته وويل، ځکه ده ته هم ډېر مراجعين راتلل. ده راته ويل چي تر رسمياتو وروسته ښه بېغمه مجلس کولای سو. بيا مي دغسي کول د مازيګر له خوا به کله کله ورتلم.

په خپله کاري دوره کي ئې ډېر ناشوني کارونه شوني کړل، او د هغو تر څنګ ئې د کتابو و چاپولو ته ملا وتړله، او ښه په پېخر ئې چاپ کړل.

يو مازيګر ئې راته وويل: خپل شعرونه دي راټول که، چي چاپ ئې کړو. ما ورته وويل اوس ئې د چاپولو اراده نه لرم، ځکه چي ډېر په باوري نه يم. ده راته وويل: "څه وايې د خدای بنده ما دي شعرونه اورېدلي دي". او بيا ئې زياته کړه: دا بعضي شعرونه چي تر خپل وخت او موسم تېر سي هغوندي قوت بيا نه لري نو اوس ئې وخت دئ، خو ما د ده له ټينګار سره سره انکار کاوه. ده بيا په خندا وويل يا اوس ئې ښه موقع ده. د همدې کال په روژه کي اختر ته نژدې ئې په رياست کي يو روژه مات برابر کړی وو. چي ښه ډېر ملګري راغلي ول. تر ډوډۍ خوړلو وروسته ځو ځو کسه په خپلو کي په خبرو اخته ول. دی موږ ته نژدې ناست وو او ما ته رانژدې سو په لږ کښته ږغ ئې راته وويل: تا په شعرونو څه وکړل؟ ما بې له خندا بل څه ورته و نه ويل. ده بيا ډېر ټينګار وکی او ټاکلی وخت ئې راته وټاکه چي تر اختر وروسته ئې خامخا راوړه. ما ورته وويل: پټيال صاحب ته به وايې چي دی ځان کنجوي، خو زه په باوري نه يم، ده راته وويل، چي: زه بل چا ته ولي نه وايم ستا شعرونه ما اورېدلي دي، ما مننه ځني وکړه او د ورکولو ژمنه مي ورسره وکړه.

تر هغې ورځي وروسته ما هم زنګون ورته کت کی او خپل خپاره واره شعرونه مي سره راټول کړل. ځيني چي سم ول هغه مي په کتابچه کي وليکل او ځينو چي کار غوښتی هغه مي تراش کړل. کتابچه مي قلم مل ته ورکړه هغه ټوله کمپوز کړل او په فلش کي ئې راکړل. ما هم فلش يو مازيګر ورووړ. دی د

طلوع افغان په دفتر کي د ستوري سره ناست وو. د هغه فلش څخه ئې د طلوع افغان په کمپيوټر کي کاپي کړل او فلش ئې بيرته راکړ. ما ورته وويل چي شعرونه خو مي درکړل، خو د سريزي ليکلو ژمنه به راسره کوې. ده راته وويل: چي زه به يو يادښت پر وليکم، خو زما د ټينگار سره اروانښاد د سريزي ليکلو راسره ومنل. بيا مي ورته وويل چي په سريزه کي به مي هيڅ لحاظ نه کوې. څه چي په دېگ کي دي هغه به په کوکير راکاږې.

ده په خندا راته وويل چي: ښغمه اوسه.

ډېر وخت وروسته مي پوښتنه څني وکړه. ده راته وويل چي هغه د طلوع افغان کارگرو ډيليټ کړي دي. که هغه فلش بيا په لاس راکې. ما ورته وويل هغه فلش د قلم مل صاحب وو. راته ويې ويل: د هغه د ټليفون نمبر راکه. عبدالله ستوري ټليفون ورکی او د فلش غوښتنه ئې څني وکړه، خو څه سر مو سره گرزوم تقريباً اتلس مياشتي کتاب نادر که سو.

يوه ورځ د بادام گل له مشاعرې څخه چي راغلو د کابل په اډه کي د حيات الله څرک په دوکان کي مو چای چښلې، چي عبدالواسع هڅيال زنگ راته وواهه تر سلام عليک وروسته ئې يو څو بيتونه راته وويل. ما ورته وويل چي دا څنگه شناخته بيتونه دي. د مسخرو په انداز مي ورته وويل: له مشاعرې څخه موږ راغلو او شعرونه ته راته وايې. ده زما د کتاب نوم ياد کړ، چي دا کتاب مي همدا اوس لاس ته راغلی، مبارکي درته وايم، ما هم مننه څني وکړه.

يو دوې ورځي وروسته چي رياست ته ورغلم، فکر کوم لکه چي پټيال صاحب کابل ته تللی وو. د ښاغلي روهيال صاحب کوټې ته ورغلم او هغه د جريان څخه خبر کړم. بيا ئې يوه ملازم ته وويل چي له هغو کارټنانو څخه يو څو داني کتابونه راوړه، هغه فکر کوم پنځه داني راوړل. روهيال درې داني ما ته راکړل ما هم مننه څني وکړه.

کله چي اروانښاد پټيال له کابله راغی په يوه مشاعره کي سره مخ سوو. ده راته وويل: کتاب دي خوښ سو؟ ما د مننې په ويلو سره ورته وويل، چي: ولي مي نه خوښېدی، ډېر ښايسته چاپ سوی وو.

کله چي د ۱۳۹۱ش کال په اواخرو کي د ولايت مرستيالی ته ورسېدی، نو په رښتيا ئې ديدن قيمتي سو. يعني تر ولايت پوري ورتگ او ده ته رسېدل د غره ختل وه. خو کله کله به مي دا ستړيا هم پر ځان قبوله کړه، وره به غلم. چي تر څو ځايه تلاښيو وروسته به د ده د کار خوني ته ورسېدم، د هغې خوني شخصي پيره دار به راته وويل چي د پټيال صاحب سره مېلمانه ناست دي، اوس وخت نه لري. بله ورځ به بيا راته وويل سوه چي هغه په مجلس کي دئ. لکه څنگه چي مي مخکي وويل چي غونډې، مشاعرې او سيمينارونه د ليدلو له پاره يو ښه چانس دئ په کندهار کي (د ۴۰ کالو له تاريخي پېښو څخه زده کړه) جوړ سوي سيمينار په يوه څنډه کي ناست وو. کله چي مي د هوټل و کارگر ته د چايو د راوړلو ويل اروانښاد پټيال مي هم وليدی. ټينگ د غېږي روغبړ مو سره وکړ. د فرهنگي کارو په اړه مي

ځني وپوښتل. ده راته وويل اوس مي يو څه وخت پيدا کړی دئ. په ځينو کارو اخته يم، ما ورته وويل دغسي يو مخ نو شا هم مه ورګرځوه. په خندا ئې وويل يا اوس کار پر کوم. د سيمينار تر خلاصېدو وروسته ټول مېلمانه د بابا صاحب زيارت ته ولاړل. د ارغنداو په اولسوالي کي مو د ماښام تر لمانځه وروسته ښه په پېخر انار وخوړل. د هغې خوا راسآ د ښاروالۍ تالار ته راغلو، هلته د غونډو په تالار کي مشاعره شروع سوه. عبدالغفور لېوال، پروين ملال، درويش دراني او د ځينو برخوالو په غوښتنه د ځوانيمرګ پتيال څخه هم غوښتنه وسوه چي دريځ ته راسي او خپل شعرونه ووايي.

دی چي زما شا ته پر چوکۍ ناست وو د شعر له ويلو څخه ئې نټه وکړه، خو ملګرو مجبور کړ، ده هم يو نفر ته وويل زما کمپيوټر راوړه، له هغه څخه ئې پرله پسې شعرونه وويل، ځينو برخوالو د هغه شعر غوښتنه ځني وکړه (کندهار نه دئ زما زړه دئ) ده د کمپيوټر د صفحې په اړولو هغه شعر ووايه، خدای سته محفل ئې ډېر د خپل جادويي ږغ تر تاثير لاندي راووست.

تر محدودي مشاعرې وروسته د ولايت مقام د ډوډۍ خوړلو ځای ته راغلو، هلته مو ډوډۍ نوشجان کړه. زه چي کله د لاس پر ېولو له پاره راولاړ سوم سمدستي مي شهيد پتيال مخ ته راغی راته ويې ويل: ډوډۍ دي وخوړه؟ ما ورته وويل تر پزې مي ځان موړ کړ. ده و يوه لوښي ته اشاره وکړه، ول: دغه شی به دي نه وي خوړلی؟ ما ورته وويل والله که مي بالا شی خوا ته کېږي. دی زما د دې جملې د ويلو سره ولاړی خالي غاب ئې واخيستی او له هغه لوښي څخه ئې فيرني راوړل، ما ته ئې ونيول ويل دا جلا شی دئ، تې وخوره. ما ټينګار پر وکی چي په دواړو به ئې وخورو، ده يوه چوکۍ راکش کړه زه ئې پر کښېنولم، دی راڅخه ولاړی. په داسي شکل پر ټولو برخه والو ګرځېدی، لکه دا ټول چي يوازي د ده مېلمانه وي. پر هر يوه ئې جلا جلا پوښتنه کوله، تر ډوډۍ خوړلو وروسته يو لنډکی فلم د کندهار د تاريخي آبداتو په اړه جوړ سوی وو هغه هم و برخه والو ته وښوول سو.

تر دې نندارې وروسته کله او اختيار سو د کندهار ملګري هر يو پر خپله لاره ولاړل، دا مو نو د ژوند وروستۍ ليدنه وه. بل وار مي هغه وخت وليدی چي د مرګي په خوب بيده د تابوت په څلورو ډېوالو کي پروت وو او شاوخوا انډيوالان او دوستان پر راڅرخېدلي وه. چا به ويل خدای دې وبخښي، چا به ويل: شهادت دې خدای قبول کړي. چا به ويل: جنتونه دي ځای سه.

ډېرو انډيوالانو او دوستانو ئې خورا په لوړ آواز ژړل، د داسي نازولي شهيد پر شهادت يوازي په جنازه کي موجودو خلکو نه ژړل بلکي د دې ځوانيمرګ پر مرګ آسمان هم پر هغه وخت له روغتونه تر لحده پوري ټوله لاره په خپلو اوښکو پرېولل او د لاري ګرد ئې د جنازې د کاروان مزاحمت نه کاوه.

روح دې ښاد وي!

هغه سر د غم په کاني کا ســرې ويني
زمانه چي د چا ګل کېږدي دستار کي

# هنر او ادب

چلوونکی: پردېس کندهاری

حمکت سروش

## غزل

په جنګ کي دي بری تر خپله در نه دئ راوړی
میدان ته دي له توري سره سپر نه دئ راوړی

زه هم په یو جګړه کي تر خپل غاړه یم تېر سوي
بابا هم له یو جنګ څخه خپل سر نه دئ راوړی

تر دې کلي چي تېر سي بیا دي ځي په خوشحالیو
له دې کلي مرغیو روغ وزر نه دئ راوړی

انسان ورته ولاړ دئ، ماتوي یې سوځوي یې
دا ونه ګناهکاره دې ثمر نه دئ راوړی

سروشه ته به هم وایې، ځواني خو دکار څیز وو؟
د عشق د بدنامیو دي هیڅ شر نه دئ راوړی

هارون حکیمي

## غزل

ارزو د هغه وخت ده چي جانان پکي ودان وو
نړی له جنګه روغه وه، افغان پکي ودان وو

د توري، ترقی، تعلیم او شاه تاریخ ئې ولوست
د ټولو خلاصه دا وه چي ځوان پکي ودان وو

ابلیس د ځان اباد د جهان وران تصویر ته ګوري
هغه لاره به پالي چي یې ځان پکي ودان وو

د سرقاتل مي نن د محبت په روی معاف کړ
چي دار تې غاړه ورکړه، یو ننبان پکي ودان وو

د توري قهوې جبر، د وختونو وچه تنده
ترخې د پردېس شپې وې، خوارمان پکي ودان وو

هارون به دا خپل زړه وای ستا په پښو کې غورځولی
خو دا یواځې ستا نه وو، جهان پکي ودان وو

مکتوم:

## غزل

زه د حسن ملکوت یم شمعې مړې راپسې ژاړي
د خلوت له تاریکیه څو جلوې راپسې ژاړي

د امام زړګي په زور مي د کعبې خواته تکل دئ
میخانې راپسې ژاړي څو پیالې راپسې ژاړي

ستا د مینې عبارت دئ او ستا پښو ته سجده ده
ستاتصویر مې مخ ته پروت دئ تنکۍ شپې راپسې ژاړي

ستا د خړ کلي ملنګ وم او خړ کلی مې جانان وو
د کوڅې دبوال دوعا کړي دروازې راپسې ژاړي
څو د مینې مست انصارو په ژړاو سترګې سرې کړې
له یثربه راسره دي تر مکې راپسې ژاړي
په یو کلي کې دوه زړونه یو مې وولي په کاڼو
خو یوه کوچیانۍ پېغله لځې پښې راپسې ژاړي

زه د ځوانې پېغلې روح یم زه د خوان زړه جنازه یم
لارې ټولې په ژړا دي هدیرې راپسې ژاړي

یو له بله مخه ښه ده یو له بل څخه بېلېږو
آینو ته په ژړا یم آینې راپسې ژاړي

له مودو څخه مکتومه شاعري بلا وهلې
یو غزل راپسې مړ سو ترانې راپسې ژاړي

حامددقیق

## غزل

یو څوک مي پر وجود لکه بلا ګرځي راګرځي
له درده چیغې وکړمه پر ما ګرځي راګرځي
بې تا داسي وختونه مي په کار نه وه جانانه
بې تا د غم اورونه پر دې خوا ګرځي راګرځي
د زړه په کتابچه کې ما رسم کړی ستا تصویر
نو ځکه مي پر زړه باندي اشنا ګرځي راګرځي
یو ځل خو دي د زړه په خوا د درد جواب راکړی
دوهم ځل هم دا کړنه بس پر تا ګرځي راګرځي
زما و خوشحالیو ته دقیق سي ټول غمونه
زما و خوشحالیو ته بیا بیا ګرځي راګرځي

عبدالصمد ولي اړ

## غزل

خوله کې مي قند وو ته مي ښکل هم نه کړې
اند او روند وو ته مي ښکل هم نه کړې

د مرګ علاج مي هسې هم نه کېدی
دوې ورځې ژوند وو ته مي ښکل هم نه کړې
اې! تسلي مي بېخي هېره وه چې
خوږ دي مړوند وو ته مي ښکل هم نه کړې
کلونه وروسته درغلی ومه
دوکان مو بند وو ته مي ښکل هم نه کړې

یوې نجلۍ خپلي ادې ته ویل
اړ که نڅند وو ته مي ښکل هم نه کړې

عبدالنافع ثنا

## غزل

کلــه نــا کلــه خــو کــوه خبــره
زمــا د زړه ســره ! د زړه خبــره
بانــدي رپيــږي د آهونــو جنــډې
مــا ښــخه کــړې ده پــر زړه خبــره
چــي د خمــارو ســترګو ذکــر بــه وو
زمــا بــه زړه کــي مــستېده خبــره
مــا ورتــه زړه وو لپــه کــړی اشــنا
ســتا چــي تــر شــونډو توئېــده خبــره
بــې لــه مــا وا نــه وربــده چــا هــم ثنــا
چــي مــي تــر ســترګو څڅېــده خبــره

نقيب احمد قريشي

## غزل

نه په زوال کي سته او نه د چا په خيال کي سته
ګراني ! اتيا زره صفاته دي په خال کي سته
يوې نجلۍ ساعت کي څو رنګه رنګونه راوړل
دادی رشتيا سوه چي پنځه فصله په کال کي سته
ستا د يــوه واري ليــدلو جنتــي خوندونــه
نه په مسجد کي سته او نه په درمسال کي سته
چي ما له ما نه ورک کړي داسي عجيبه کارونه
شيريني ! ستا د تورو سترګو په کمال کي سته
د مُــلا فکــر د مُــلا څخــه بــلا جــوړه کــړه
څه چي په توره کي سته هغه هم په ډال کي سته
هغــه زمــا زړه تــه د کلــو راهيــسي لار کړېــده
خوار نقيب زما د حرکت په هر جنجال کي سته

محبوب مشتاق

## غزل

کومــه ورځ دي زه بــې حوصلې نــه کــړم
درک دي يــوه ورځ هــم زمــانې نــه کــړم
مرګــه بــس دئ، نــور دي ذوکلومــه نــه
نــور نــو درتــه نــوري بهــانې نــه کــړم
وايــه بــې وســی کلــه دي مــړ نــه کــړم
وايــه کومــه ورځ دي بــې څېــرې نــه کــړم
ژونده د نجات غېږ کي دي پټ نه کړم
تېــر دي د مرګونــو ترڅېــي نــه کــړم
هــوولا پــه ژونــد کــي دي پــالتو يمــه
ځان سره دي نوري نــو کيسې نه کړم
پرې ابېږده مــشتاق مــي قسم نــه منې
نــور ورتــه قــسم پــه ســپارې نــه کــړم

ثريا حميدي افغان

## غزل

څومره بې وسه يمه څومره بې وسۍ کي يمه
ځان سره ژاړم د دردونو په نړۍ کي يمه
داسي ډېوه يم چي د مرګ امکان مي هر کله سته
کله طوفان کي يمه کله په سېلۍ کي يمه
په ټوله ژوندکي د هغه شاعر ځای ناستې نه سوم
هسي لګيا يمه بېخونده شاعرۍ کي يمه
رويباره نن راته احوال د جانان ډېر مهم دئ
ښنو کي دي پرېوتمه تاته په زارۍ کي يمه
نن يې سندرو کي په هر ځل ثريا ويله
هم يې رباب کي ومه هم يې په شپېلۍ کي يمه

عطامحمد بياباني

## غزل

شروع به يا قربان کړم د لنډۍ سره
ورک که سوه تارياک د وچکالۍ سره

خير دئ که د غوښو قطرې نه وي هم
خوښ مي ترخه پياز دي له ډوډۍ سره

که ولاړم وگودر ته تش لاس نه راځم
دوې بوشکې به راوړم د مابۍ سره

کښت که مي زرغون په پسرلي نه سو
هگۍ به خرڅومه د ابۍ سره

پلار بې چنگوټۍ پر اوږه گرځوي
که چا وکړه کوزده د کابلۍ سره

زه يې د بابا پر کور زړه کړمه
دی خو دي خدای ورک کړي د ډوبۍ سره

خير دئ که کلی دئ پيکی نه لري
خوښ مي بياباني دئ د لنگۍ سره

فدامحمد اقبال

## غزل

ژونده له سترې انتظاره سره څه کوې نو
له دې نامرده کاروباره سره څه کوې نو
د دې يارانو سره ناسته پاڅه لړ په کار ده
چې درته وواېي له پلاره سره څه کوې نو
ته به وادی هم مين سوی دئ چې خاندي ژاړي
ته رويباري کوه له ياره سره څه کوې نو
هغه په ټول ژوند کي د هو خبره کړې نه ده
د يار په خوله کي له انکاره سره څه کوې نو
يو څوک دي مينه باندي سر ورکوي تا څه کړي
اقباله تا غوندي بېکاره سره څه کوې نو

**گلاب شاه نصرت**

## غزل

د جنگ له غيرې نه راځم سولي ته غاړه ايږدم
د ميني ليک پر زړه گنډم سولي ته غاړه ايږدم
د دا يتيم د دغه کونډو په خاطر کي خلکو
خيال د سنگر له غيرې وړم سولي ته غاړه ايږدم
چې د اولس له سترگو ونه څڅي نوري اوښکي
دا جمهوريت خلکو منم سولي ته غاړه ايږدم
دا ستا د سترگو اوښکو دې ته کړم مجبور جانانه
چې لار د سولي لټوم سولي ته غاړه ايږدم
د نېکي لاري لاروی سولي خفه نصرته
پر خپل مړوند شپه درکوم سولي ته غاړه ايږدم



# کابلي والا[1]

لیکوال: رابیندرانات ټاګور

د محمد هارون خپل شعشعي ژباړه

د رابیندرانات ټاګور (۱۸۶۱ – ۱۹۴۱ع) له ادبي، علمي او فلسفي شهرت او مقام سره د نړیوالو ادبیاتو مینان او شوقیان، بشپړه اشنایي لري. ټاګور لومړنی غیر اوُروُپایي وُ، چي په (۱۹۱۳ع) کال کښې د نوبل نړیواله ادبي جایزه وګټله. البته، د نوبل جایزې ګټل یا د برتانوي دولت له خوا د «سَر» اعزازي لقب تر لاسه کول د ټاګور د ستر ادبي، علمي او فلسفي شهرت دلیل نه دئ؛ ځکه نوبل جایزه یا «سَر» لقب و داسي کسانو ته هم ورکړل سوي دي، چي د نړۍ د خلګو په ادب او فرهنګ کښې هیڅ ځای نه لري. واقعیت دا دئ، چي دې مُبتکر او مُتفکر لیکوال، شاعر، ادیب، موسیقي پوه او فیلسوف، د خپلو لوړو ادبي تخلیقاتو او ژورو علمي – فلسفي شهکارو په مرسته د نړۍ د بېلابېلو اولسو و شعر، ادب، موسیقۍ او فرهنګ ته لار مؤندلې ده؛ او درانه اثار یې په ډېره مینه او تلوسه د جهان په ګوټ ګوټ کښې، په مختلفو ژبو ترجمه سوي دي. فاضل استاد – ارواښاد عبدالرؤف بېنوا (۱۲۹۲ش/ ۱۹۱۳ع – ۱۳۶۳ش/ ۱۹۸۵ع) یې مشهور اثر «ګیتانجلي» په ۱۳۳۶ ش کال په پښتو و ژباړه، چي په «انیس» ورځپاڼه کښې پر پرله پسې خپرېدو سربېره، د جلا کتاب په بڼه هم خپور سو. د میني او اخلاص دا ژور او په زړه پوري عرفاني – فلسفي اثر

دوهم پلا، په ۱۳۵۴ ش کال د پښتو د وتلي او منلي استاد – اروښاد علامه عبدالشکور رشاد (۱۳۰۰ ش / ۱۹۲۱ع – ۱۳۸۳ ش / ۲۰۰۴ ع) له خورا مفصلي او دقیقي تاریخي سریزي سره چاپ سو. وروسته د ډاکټر عبدالغفور روان فرهادي له خوا هم په پارسي ژبه، ترجمه او خپور سو. د هیواد نوميالي شاعر، لیکوال او ډپلومات، اروښاد استاد عبدالرحمان پژواک (۱۹۱۹ – ۱۹۹۵ع)، یې په (۱۳۳۸ش) کال د «باغبان» په نامه یو بل اثر په پارسي و ژباړه. «تاج» د رابیندرانات ټاګور یو بل ارزښتناک اثر دئ، چي د پښتو د تکړه لیکوال او مترجم – ښاغلي محمد علم خان بڅرکي (۱۳۰۰ش / ۱۹۲۱ع – ۱۳۸۴ش / ۲۰۰۲ع) له خوا، په پښتو ژباړل سوئ دئ. ښایي د ټاګور ځیني نور اثار هم په پښتو یا پارسي ژبو خپاره سوي يې، چي متأسفانه زه یې تر دې دَمه په خپرېدو نه یم خبر.

که څه هم رابیندرانات ټاګور د لوېدیځ بنګال په خورا شتمنه او اشرافي کورنۍ کښي زوکړی ؤ؛ د قدرت، دولت او شهرت هیڅ کمي او کاستي يې نه لرله؛ خو انساني او عرفاني مینه یې تر اجتماعي، اقتصادي، نژادي او مذهبي پولو ډېره اوښتې وه. د هغه ادبي، هؤنري، عرفاني او فلسفي اثار بې له شکه د سپېڅلي میني او فکري بشپړتیا لوړ او تلپاته شهکارونه دي. د ټاګور اوسنۍ کیسه (کابلي والا) په خپله هم د ده د لوړي انساني میني او ژور عاطفي احساس، روښانه ثبوت دئ. دا ښکلې او زړه وړونکې کیسه د هغه پردېس افغان د ژوندانه دردناک انځور کاږي، چي د امیر عبدالرحمان خان د پاچهۍ پر مهال (۱۸۸۰ – ۱۹۰۱ع) له خپلي کورنۍ او عزیزانو، خپل کلي او مالت او خپلو غرو او ډاګو

څخه زرونه میله لیري و کلکتې[۲] ته په خوارۍ او غریبۍ پسي تللئ ؤ؛ او د پردېسۍ پر سوځونکي سوز او درد سربېره يې، کلونه کلونه د بندیخانې په ځلورو دېوالو کښي هم تېر کړي دي. کیسه د ژورو عاطفي اړخو تر څنګ، تاریخي او سیاسي ارزښت هم لري]. دا تاسي او دا هم د کابلي والا کیسه:

زما لور، مؤني، ګرسره د پینځو کالو وه؛ خوسره له دې بې (به يې) هم یوه شېبه ژبه نه درېدله؛ اروُمرؤ بې څه ناڅه ویل. په دولسو میاشتو کښي پر خبرو راغله؛ مور بې تل په منت او سُنت اړ ایستله، چي خوله چپه (چؤپه) ونیسي؛ او په بې ځایه ګډېدو يې ماغزه ور شلومبې نه کي؛ خو ما د دې کار وس نه لاره؛ ځکه زما په نظر د مؤني چپتیا (چوپتیا) د طبیعت پر خلاف خبره وه، چي ما تر ډېره نسواي زغملای. له دې خاطره نو ما او مؤني تل زړه خلاصي خبري او مرکې کولې.

سهار مهال ؤ، چي ما د خپل ناول د اوپایمي برخي په لیکلو پیل وکئ. نابېره مؤني راغله؛ او راته ویې ویل: «دا چوکیدار، بابا دیال، و توري مرغۍ ته کارغه وایي؛ خوارکی بابا په هیڅ نه پوهېږي!» مؤني خپلي خبري پسي اوږدې کړې؛ او زه مخکي تر دې چي د نرۍ له بېلابېلو ژبو څخه د هغې د ځینو نامفهؤمو ټکو په تؤپیر او مانا و پوهېږم، دې به سمدلاسه د بلي کیسې سر کښېښناوه. را ړغ يې کړه: «دا بابا رام دیال وایي، په اسمان کښي یو پیل دئ. کله چي له شونډکه اوبه وپاشي، نو پر مخکه باران اوري. نه پوهېږم دا بابا دیال عجبه عجبه خبري کیي (کوي). تر دې خبرو وروسته مؤني سَوګه سَوګه د لیکني مېز ته نیژدې زما له پښو سره کښېنستله. په داسي حال کښي، چي ځنګنونه يې په دواړو

لاسو نیولي وه، په بازییو او ساتېري اخته سوه. مؤني په لوبو او ساتېري لگیا وه؛ او هم ما د خپل ناول اویایمه برخه پیل کړه، چي په هغې کښي پر تاب سینگ د مابس (محبس) له لوړو کړکییو او مزبؤتو پنجرو څخه کنچن مالا برمته کیي؛ او ځانونه د مابس په څنگ کښي و تېري سوي لو (لویي) ولې ته غورځیي.

زما کور د سړک پر غاړه دئ؛ ځکه نو د سړک پېښي او حالات، په ډېري اسانۍ، له خپلي خوني څخه گورم. لا د ناول په لیکنه اخته وم، چي مؤني ناڅاپه بازۍ پرېښوولې؛ او په تراټ یې د کړکۍ و خواته وځغستله؛ په زوره زوره یې نارې کړې: «کابلي والا! او کابلي والا!» کابلي والا، چي لوی او اَرَت کالي یې اغوستي؛ غټه بگړۍ یې تړلې؛ پر ملا یې لو توبره ځړولې؛ او په لاسو کښې د انگورو درې – څلور ټوکرۍ هم نیولي وې، دنگ بنگ، غټ مټ سړی ؤ، چي زموږ کور ته نیژدې پر سړک رهي ؤ.

نېخه زما د دې سیده ساده لور په زړه کښي څه ور وگرزېده، چي سمدلاسه یې و کابلي ته ورږغ کړه. ما له ځان سره سوچ وکئ، چي که دا توبره والا کابلي، دا بې درمانه بلا، و دې خوا ته را زرغون سي، ما به د دؤنیا له کاروباره وباسي؛ او د ناول اویایمه برخه به مي نیمگړې او ناتمامه پاته سي.

کابلي د مؤني د چغو او نارو په اروېدو سره وخندل؛ او مخامخ زموږ د کور پرخوا را رهي سو؛ خو مؤني د کابلي تر را رسېدو دمخه، ځان ژرتر ژره د ښځو په هغه خونه کښي نیهام کئ، چي کابلي له دباندي څخه نسوای لیدلای. ښایي مؤني د کابلي له هغې لویي توبرې څخه بېرېدلې وه، چي د دې په څېر څو کوچنیان پکښي ځایېدلای سوای.

خیر، کابلي په څو شېبو کښي زما د خوني و مخ ته ودرېدئ؛ او سلام یې وکئ. زما اندېښنه دا وه، چي د ناول اتل، پرتاب سینگ، او اتله، کنچن مالا، اوس و داسي حساس او نازک پړاو ته رسېدلي، چي پرېښوول یې سم او خوندور نه را ته برېښېدل. له بله پلوه دا خبره هم سمه نه وه، چي کابلي مو د کور و دروازې ته را غوښتئ ؤ؛ خو بې له له څه رانیولو مو هسي ځنډولئ وای. له دې سَوَبه مي یو څه ځني رانیول؛ او په دې ډَول زما او کابلي تر منځ خبري اتري پیل سوې. اول مو د افغانستان د پاچا، امیر عبدالرحمان خان، په اړه څو خبري وکړې؛ بیا مو د روسانو په باره کښي څه یادونه وکړه؛ او وروسته د امیر عبدالرحمان خان او انگرېزانو د تړون[۲] په باره کښي وړغېدو. کابلي، د رهي کېدو پر مهال را ته و ویل: «بابوجي! آ لورکۍ دي څه سوه، چي مخکي یې نارې را وهلې؟» د مؤني په زړَه کښي له کابلي څخه د بې ځایه بېري او تراه لیري کولو دپاره ما هغه د کور له دننه څخه و خپلي کوټې ته را وغوښتله. مؤني راغله؛ خو له بېري یې ځان ټینگ په ما پؤري مؤښلوَلئ ؤ؛ کابلي او د هغه بېرؤنکي توبرې تې په ترهېدلو سترگو کتل. وروسته، کابلي له خپلي لویي توبرې څخه څه کِشمش او زردالو را و ایستل؛ او مؤني تې ور وړاندي کړل. مؤني نه یوازي هغه وانخیستل، بلکي پخوانۍ بېره یې نوره هم زیاته سوه؛ ځان یې نور هم زما په ځنگنو پوري ټینگ و مؤښلاوه. دا وه د مؤني او کابلي د لومړۍ کتني ټول ښه او بد.

څو ورځي وروسته، د کم (کوم) کار په مخسد (مقصد) له کوره و وتلم، که مي کتله مؤني له دروازۍ سره پر چوکۍ ناسته ده؛ او لکه ماته راډیو پرله پسې خبري کیي؛ کابلی یې و څنگ ته ناست دئ؛ او په ځیر ځیر یې

خبرو او مرکو ته غوږ نیولی دی؛ کله کله یې پر خبرو خاندي؛ او کله کله په ماته ګوډه ښنګالۍ ژبه، خپل نظر هم ورته وایي. مؤني په خپل پینځه کلن ژوند کښې، بې پلاره د کابلي په شان داسي څوک نه ؤ لیدلی، چي و خبرو ته په مینه او توجه غوږ نیولی وای. ما لیدله چي د مؤني کوچنۍ لمن به همېشه له بادامو، کِشمِشو او جَوزو ډکه وه.

یوه ورځ مي کابلي ته و ویل: «خانه! تکلیف مه کوه؛ مؤني ته دا دؤنه (دومره) مېوې مه ورکوه!» هغه ته مي تر دې خبرو او نصیحتو وروسته یوه اټانۍ (اته انې/ د روپۍ نیمایي) ورکړه، چي ده هم په چټکۍ سره واخیستله؛ او په خپله توبره کښې واچوله. کله چي تر څه ځنډ وروسته بیرته کورته ننوتم، که ګورم چي هغې اټانۍ په کور کښې لو شخړه جوړه کړې وه. د مؤني مور یو برېښندونکی ګیردی فلز په لاس کښې نیولی ؤ؛ او په درد او خښم یې له مؤني څخه پوښتنه کوله: «ووایه! دا اټانۍ چا در کړې ده!» مؤني په جواب کښې ورته وایي: کابلي را کړې ده. مور یې بیا پوښتنه ځني کیي: «تا ولي ځني اخیستله؟» مؤني په ژړا ژړا ورته وایي: «ما خو نه وه ځني غوښتې، هغه په خپله راکړه!»

د دې لانجې د حلولو دپاره ما مؤني و خپلي خوني ته را وغوښتله. تر پوښتنو ګروېږنو وروسته را ته مالومه سوه، چي دا د مؤني او کابلي دوهمه کتنه وه. کابلي زیاتره مؤني ته پیسته (پسته)، بادام او داسي نوري مېوې ورکولې؛ او په دې توګه یې زموږ د مخ ماتي او سپېڅلي مؤني و کوچني موچني زړَه ته لار پیدا کړې وه. ما کتل، مؤني تل د کابلي په لیدو سره، چي رحمت نومېدی، د زړَه له کومي مسېده؛ او داسي پوښتني ځني کولې: «کابلییه! په توبره کښې دي څه شي دي؟» رحمت بې له اړتیا د یوه نون په زیاتولو سره جواب ورکاوه : «په توبره کښې مي هانتي (پیل) دی.» کابلي ته دا ډېره خوندوره ټوکه ښکارېده، چي همېشه بې له مؤني سره کوله. هغو دواړو له دې ټوکي څخه، که څه هم چندان خوندوره او خندؤنکې نه وه، ډېر خوند اخیستی.

د مني په شپو او روځو کښې له یوه پاخه سړي سره د یوې کوچنۍ نجلۍ د سپېڅلي او بې غرضه راز و نیاز په اروېدو به زما هم د زړَه سؤدَه کېدله؛ او وخت به مي په خوښۍ او خوشالۍ تېرېدی. رحمت به له مؤني څخه پوښتنه کوله: «مؤني بابا! ته هیڅکله واده نه کیې! او د خُسر کره نه ځې!» پخوا به ښنګالۍ نجوني له زېږېدو څخه د خُسر او خُسر ګنۍ په مانا پوهېدې؛ خو زموږ مؤني له دې اسیته، چي په نوي عصر او نوو حالاتو کښې زوکړې وه، تر اوسه په دې خبرو او مسألو نه پوهېدله؛ ځکه یې نو د رحمت د خبري په مفهوم سر نه ؤ خلاص سوی. د رحمت پوښتنه بې جوابه پرېښوول، د مؤني له خوی او عادت څخه لیري کار ؤ. په دې خاطر یې په جواب کښې له کابلي څخه هماغه پوښتنه کوله: کابلییه! ته واده نه کیې! د خُسر کره نه ځې!» رحمت به یو دروند شی پورته کی؛ او د مؤني د خندولو دپاره بې خپل خُسر په وواهه. مؤني بابا! زه خپل خُسر په دغه شي ولم.» که څه هم مؤني د رحمت د تش ټپ ټپ او خالي ګوزارو په مفهوم نه پوهېدله؛ خو سره له هغه بې هم د هغه و دې خندؤنکو ګوزارو ته په کټ کټ خندل؛ او یوه شېبه بې خوله له خندا نه ور ټولېدله.

د مني موسم ؤ. په دې موسم کښې به د راتلؤنکي وخت پاچا او شازاده (شهزاده) د نرۍ نیولو په نیامت تر خپل پاچهي قلمرو

دباندي وتل. زه هیڅکله له کلکتې څخه نه یم
وتلئ. په دې خاطر نو د ټولي نړۍ په باره
کښي فکر کوم. که څه هم تل د خپل کور په
یوه گوښه کښي اوسم؛ مگر زړَه مي تل په
بهرنۍ نړۍ کښي گرزي.

د یوه بهرني هیواد په اروېدو سره مي
خیالونه او سوچونه هم و هغې خواته ټوپونه
وهي. کله چي له کم هیواد څخه راغلئ
پردېس و وینم، نو سمدستي مي د خیالو او
سوچو په دؤنیا کښي د هغه هیواد د کم رود،
غره یا ځنگله په لمن کښي د یوې کوچنۍ
جونگړي او په هغې کښي د یوه ازاد او خوشاله
ژوندانه انځور هم و سترگو ته جگ ودرېږي.
سره له دې چي زه تل د گرده نړۍ په اړه
سوچونه کوم، خو عملاً د هغي درختي (وني)
په شان یم، چي ریښې یې په مځکه کښي
ټینگي ښخي دي؛ او هیڅ خوا ته نه سي
ښورېدلای. هر کله چي له کور څخه د وتلو
تکل کوم، داسي را ته ښکاري لکه پر سر چي
مي لوی غر را چَپه کیږي. له دې وجي به د
سهار پر مهال په خپله کوچنۍ خونه کښي و
مېز ته نیژدې کښېنستم؛ او د کابلي د خبرو په
اروېدو سره به مي په زړَه کښي د سیاحت او
گرزېدو مینه ماتوله. کابلي به په ماته گوډه
بنگالۍ ژبه د خپل هیواد او سیمي بېلابېل
حالات را ته بیانول. د هغه له خبرو او مرکو
څخه به زما په ذهن کښي د داسي لاري تصویر
کښل کېدئ، چي دواړو خواوو تې سره ډبرینه
بې اوبو او بې وښو مځکه وه؛ او د لاري په اوږدو
کښي به د بگرۍ ټرلو سوداگرو او لاري نیوۨنکو
کاروان رهي ؤ. څوک به پر اوښ سپور ؤ؛ څوک
به په پښو روان ؤ؛ د چا په لاس کښي به زوړ
توپک؛ او د چا چا په لاسو کښي به برچه یا
سېلاوه وه.

د مؤني مور داسي خوی لاره، چي په
کوچنییو او وړو خبرو به ډېره اندېښمنه
کېدله. کله چي به پر سړک د لارویانو ږوَږ یا
غالمغال واروېدل سو؛ نو داسي بې گڼل، چي
گوندي د جهان گرده شرابیان او نشه یان د
دې و کور ته ور روان دي. که څه هم عمر یې
دونه نه دئ؛ خو بیا هم د ژوندانه په چارو
پوهیږي. سره له دې هم د هغې په زړَه کښي
دې بېري او اندېښنې پوخ ځای نیولئ، چي د
نړۍ گوټ گوټ په غلو، شرابیانو، مارانو،
زمریانو، د ملاریا په غؤماښو او نورو خزندو
ډک دئ.

د داسي اندېښني او ډار په لرلو سره،
هغې پر رحمت هم د ښه سړیتوب باور نسوای
کولای؛ ځکه بې نو ما ته په ټینگار سره ویله،
چي تل د هغه پر کړو وړو پام وکم. ما به په
خندا خندا د هغې خبري تېرولې؛ او کوښښ
به مي کاوه، چي دا ناوړه شک او گومان یې له
زړَه و باسم؛ اما هغې به بیا هم د خپلي بیري او
اندېښنې له مخي داسي پوښتني کولې: «ایا
هغه هیڅکله د چا کوچنی نه دئ غلا کړئ؟!
ایا په کابل کښي مریان نه خرڅیږي؟ ایا و دغه
دنگ بنگ کابلي ته د یوه کوچني ماشوم غلا
کول او برمته کول څه گران کار دئ ؟!»

منم هغه څه، چي د مؤني مور یې وایي،
ټوله شؤني او کېدؤنکي وه؛ خو سره له دې هم
د کابلي رحمت په اړه داسي گومان، ښخي
ناسم او له انصافه لیري ؤ. خیر، د باور او
اعتماد حس په هر چا کښي یو شان نه یي؛ زما
د مېرمني په زړَه کښي همېشه باور لږ، خو
بېره ډېره وه. د بې باورۍ او بدگومانۍ پر دې
ټولو خبرو او اندېښنو سربېره، ما هیڅکله
رحمت خپل کور ته له راتلو څخه بند نه کئ.

هر کال به رحمت د جنورۍ او فبرورۍ
په میاشتو کښي و خپل وطن ته تئ. تر
ستنېدو مخکي به کور په کور گرزېدئ؛ او له

خپلو پوروړو څخه بې د پور پاته پیسې اخیستې. د کال په دغو ورځو کښې بې پر زیاتو بوختیاوو سربېره، د مؤني لیدنه هم، نه ناغه کوله. که به سهار را ښکاره نه سو، نو ماښامي مهال خو بې ارۀ مرۀ حاضري ورکوله.

د کوڅې خلګ به زموږ له کور سره د هغه په لېدو هېښ پېښ وه. د یوه جګ، لوړ، غټ مټ سړي لیدو، چې پراخ او اوږده کالي بې هم اغوستي وه؛ لو توبره بې تر ملا تړلې وه؛ او چیري به په تېاره کښې و یوې ګوښې ته غلی ناست ؤ، خامخا د خلګو په زړو کښې اندېښنه او تراه پاروله. کله چي به مؤني د «کابلي والا»، «کابلي والا» نارې ووهلې؛ او په څوَب او میني سره بې د هغه پر خوا ور وځغستله؛ او تر منځ بې د خندا او ټوکو همېشنۍ خبري پیل سوې، هله به نو چؤرتي او اندېښمن خلګ هم ډاډه کېدل، چي و کوڅې ته یې مُضر یا خطرناک څوک نه دئ ورغلئ.

سهار وختي په خپله خونه کښې ناست وم؛ او د یوې مُسوَدې پروف مي لوستئ. هوا ډېره سړه وه؛ ژمي د هري روځي په تېرېدو سره خپل زور او شِدت ښووَه. د سهار اته بجې به سوې، چي ایلهِ ښېله به د لمر وړانګې تر کړکۍ را تېرېدې؛ او د مېز تر څنګ به زما پر پښو لګېدې؛ او له تودوخي څخه به مي ټول وجود غوړېدئ. دا وخت به نو زموږ له کور څخه د هغو مزدورو ښځو ځیني ځیني هم تر ستر ګو کېدلې، چي سرونه او غوږونه بې په تودو دؤسملانو پېچلي وه؛ او د چوپړ کولو دپاره به د خپلو مالِکانو وکورو ته ور رهي وې.

په دغؤ شپېو کښې مي نابېره د خلګو بېساري نارې او ږغونه تر غوږه سول. چغې او نارې کرار کرار پسي زیاتي سوې. زه هم ناارامه او اندېښمن غؤندي سوم. چي مخ مي ور واړاوه، ګورم د پولیسو دوو سپاهیانو رحمت ټینګ نیولئ دئ؛ او غواړي چي له ځانو سره یې و خپلي ټانې (مأموریت) ته بوزي. ډېر خلګ د سپاهیانو او رحمت پر شاوخوا را ټول سوي وه. د رحمت پر جامو د وینو ټپلي ښکارېدې؛ او د یوه سپاهي په لاس کښې، په وینو لړلې چاړه هم لیدل کېدله. زه هم په تلوسې سره دباندي ور و وتم؛ او له سپاهیانو څخه مي د پېښې په اړه پوښتنه وکړه. د سپاهیانو او رحمت تر لنډو خبرو وروسته مي سد ورسېدئ، چي کم چا زموږ په ګاونډیتوب کښې له کابلي رحمت څخه یو رامپوري شال په پور اخیستئ ؤ؛ او د هغه څه پیسې لا تر اوسه پر پاته وې؛ خو پوروړي اصلاً له شال رانیولو څخه کوَرَټ مُنکر ؤ. په دې وجه خبره په پای کښې دې ته رسېدلې وه، چي رحمت خپل پوروړی په چاړه ووهي.

په دې لګه درګه کښې، مؤني په داسي حال کښې چي د «کابلي والا»، «کابلي والا» چغې یې وهلې، له کوره را و وتله. د رحمت څېره د مؤني په لېدو سره د ګل په شان وغوړېدله. البته، نن له رحمت څخه د میوو لو توبره نه وه. له دې سوَبه د نورو روځو په دود د توبرې د محتویاتو په اړه یادوَنه او پوښتنه و نه سوه؛ اما مؤني د پخوا په شان له رحمت څخه پوښتنه وکړه: «کابلییه! ته واده نه کیې؟ ته د خُسر کره نه ځې؟» رحمت په خندا ور غبر ګه کړه: «هو! هو! هورې ځم.» خو کله چې (چي یې) ولیده، مؤني د ده له جواب څخه خوند نه دئ اخیستئ، نو یې د لاس په ښورولو سره

ورته و ویل: «خُسر گنۍ، والا به مي نن ډېر وهلي، ټکولي وای؛ خو څه که یې، چې لاسونه می ترلي دي.» سپاهیانو رحمت له ځانو سره بوتئ؛ او پر ټپي سوي پورورې د خپل وژونکي گوزار په گونا څو کاله بندي سو.

موږ ټولو د څو ورځو په تېرېدو سره، کابلی رحمت سوچ پوچ هېر کئ؛ او هر یو د پخوا په شان په خپل کار او ژوند اخته سوو. زموږ په زړو کښې هیڅکله دا احساس نه پیدا کېدئ، چې د غرنۍ سیمې یو پټان ولي له خپل کور او عزیزانو څخه لیري د کلکتې په مابس کښې شپې او روځي تېریې. مؤني هم ډېر ژر خپل پخوانی ملگری، رحمت، له زړه و ایستئ؛ او له نبي سایس سره یې دوستي او شریکي واچوله. دا چې مونۍ هم پر خپلو خوږو یادو او خاطرو سربېره هغه هېر کئ، ما ته ډېر شرم درېدئ. حقیقت دا ؤ چې مونۍ د وخت په تېرېدو سره خپل گرده پخواني شریکان او ملگري هېر کړل؛ او له نوو شریکانو او همزولو سره یې د دوستۍ او لوبو نوی پړاو پیل کئ. اوس خو حتا زما خوني ته هم ډېره لږ راځي؛ او داسي ایسي، لکه زما سره چې هم خوابدی سوې یې.

ډېر کلونه تېر سول، همغه د منې موسم ؤ. د مؤني د واده پرېکړه سوې وه. د عبادت کولو په رخصتییو کښې یې د واده مراسم پر ځای سول؛ او بالاخره هغه روځ را ورسېدله، چې مؤني نور زموږ د کور ښکلا، مینه او رڼا د خُسر گنۍ کره وړله.

ننني سهار ډېر ښکلی او زړه وړونکی دئ. داسي برېښي لکه باران چې په خپلو پاکو او زلالو څاڅکو هوا له گرز او دوړو پرېولي یې. هر څه د لمر و زرینو وړانگو ته ځلېږي. تر دې چې آن د کلکتې د زړو کورو ماتي خښتې هم، د لمر و پلوشو ته ښایسته او په زړه پوري ښکاري.

زموږ په کور کښې له سهار وختي څخه د شهنایي نغمې خپرېږي؛ خو هر راگ یې د خوشالۍ پر ځای زړه را کښېکاږي. داسي را ته مالومېده، چې د شنهایي نغمې د مؤني د راتلونکي بېلتانه په وجه زما د خوږمن او غمجن زړه درد د لمر د شغلو او پلوشو په شان په درسته نړۍ کښې خپریي. له سهار څخه په کور کښې د خلگو شور او ږوږ دئ. د کور په غولي کښې د تجیر درولو دپاره د بانس لکړي درول کیږي. په خونو کښې دننه او بهر هم د فانوسو ځړولو ټک ټک اروېدل کیږي. د خلگو د تگ را تگ او چغو نارو په سَوَب دوُنه گنه گوڼه او غولماغول دئ، چې که سړی د ښه اروېدو په مخسد له غوږو سره لاسونه هم و نیسي، بیا هم څه نه اروېدل کیږي.

خیر، زه هم په خپله خونه کښې ناست یم؛ او د واده د ننییو مراسمو د لگښتو حساب کتاب لیکم. په دې ترڅ کښې نابېره کابلي رحمت سلام وکئ؛ او مخ ته مي جگ و درېدئ. واردواره خو مي بېخي و نه پېژندئ؛ ځکه نه یې آ پخوانۍ توبره تر ملا ترلې وه؛ نه یې آ پخواني اوږده وېښتان پاته وه؛ او نه یې هم آ پخوانی واک او ځواک. ور ږغ مي کړه: «رحمته! کله راغلئ یې!» «بابوجي! پرون ماښام را ایله سوم.» رحمت را غبرگه کړه. د هغه دا جواب مي پر غوږو ښه و نه لگېدئ؛

خکه ما هیځکله خوني او وژونکې سرې نه ؤ لېدلې. په لیدو یې و ببربدم. زړه مي غوښته، چي ژر تر ژره یې له کوره رخصت کم. ورته ومي ویل: «نن زموږ په کور کښې څه مراسم دي؛ هیڅ وخت نه لرم؛ نن ولاړ سه؛ کم بل وخت به بیا خبري سره کوو.»

دا خبره چي واروېدله، سمدلاسه ولاړ سو؛ او د رهي کېدو تکل یې وکئ. تر دروازې پوري ولاړئ؛ خو بیرته را وګرزېدئ؛ او په ژړغوني اواز یې را ته و ویل: «یو پلا مؤني نسم لیدلای؟» رحمت سوچ کاوه، چي مؤني د پخوا په شان کوچنۍ او ماشومه ده؛ او د پخوا په دود به د «کابلي والا»، «کابلي والا» په نارو، په منډه منډه را و وزي؛ او د دواړو تر منځ به بیا هغه پخوانۍ خنداوي، مرکې او د زړه خواله پیل سي. رحمت د انګورو یوه کوچنۍ سَوَده، څه کِشمِش او بادام هم له کم پټان وطندار څخه اخیستي وه؛ او مؤني تې د ورکولو دپاره له ځانه سره راوړي وه؛ پدې چي د ده خپله توبره خو نوره نه وه.

ورته و مي ویل: «رحمته! نن په کور کښې څه مراسم دي؛ څکه نو مؤني له هیچا سره نسي کتلای.» د دې جواب په اروېدو سره ډېر خواشینی سو؛ یو ګړی دم ودؤد ولاړ ؤ؛ وروسته یې مخ راواړاوه؛ او ویې ویل: «بابوجي خدای پامان!» او له کوره ووتئ. د دې دردناک او ځورؤنکي حالت په لېدو سره مي زړه و رپېدئ. زړه مي غوښته، چي بیرته یې را وګرزوَم. زه لا په دغؤ سوچو او اندېښنو کښې ډوَب وم، چي رحمت بیرته و دې خوا ته را رهي ؤ. سَوګه سَوګه را نیژدې سو؛ او په کراره یې و ویل: « دغه څه انګور او کِشمِش مي و بچۍ ته راوړي دي؛ دا ورکئ!» غوښتل مي د هغو په بدل کښې څه پیسې ورکړم؛ خو هغه زما لاس ونیوئ؛ او ویې ویل: «بابوجي! تا پر ما ډېره مهرباني کړې ده، چي زه یې هیڅکله نسم هېرولای؛ پیسې نه غواړم. ستا د لور، مؤني، په شان زما هم یوه لور ده. مؤني ته د څه میوو په راوړلو سره، زه په حقیقت کښې خپله لور را په یادوم. د سودا او خرڅیلاؤ دپاره نه یم راغلئ.»

تر دې خبرو وروسته، هغه د خپل غټ او اَرَت کمیس په جېب لاس ننه ایستئ؛ او یو پېچلئ، خیرن کاغذ یې را ویست. وروسته یې په ډېر اتیات (احتیاط) په دواړو لاسو زما پر مېز وغوړاوه. پر هغه کاغذ د یوه کوچني ماشوم د لاس نخښنه چاپ سوې وه. نه عکس ؤ، نه انځور. کابلي رحمت د خپلي لور پر لاس رنګ مؤږلئ ؤ؛ او د هغه نخښنه یې پر کاغذ چاپ کړې وه. هر کال چي به کلکتې ته راتئ؛ او پر کورو بې مېوې او نور شیان خرڅول، د پردېسې په شپو او روځو کښې بې د خپلي لور د لاس هغه نخښنه له زړه سره مؤښلوله. ښایي په دې ډول بې د لور د بېلتانه درد او غم لږېدئ.

کله چي مي د رحمت د لور د لاس نخښنه ولیدله، زما هم سترګي له اوښکو ډکي سوې. هغه مهال زما او رحمت تر منځ هیڅ توپیر نه ؤ. ما دا خبره له دماغه و ایسته، چي هغه یو عادي مېوه خرڅؤنکی او زه په یوه لوړه بنګالۍ کورنۍ پؤري اړه لرم. ما د سر په سترګو ولېده، چي هغه هم ما غؤندي یو پلار دئ. د

يوې غرځنې کوچنۍ نجلۍ د لاس دې نخښې ما ته سمدستي خپله مؤني را ياده کړه. فوراً مي له کور څخه و خپلي خوني ته را وغوښتله. په کور کښې خپلو او مېلمنو ښځو ډېري ايسته و دؤري و ويلې؛ خو ما يوه هم وا نروېدله.

مؤني، په ډېر شرم او حيا د ناوې په جامو کښې، په داسي حال کښې، چي سره ورېښمينه ساړۍ يې اغوستې وه؛ او پر تندي يې د صندلو د بوټو ليکي کښل سوي وې، زما و کوټې ته راغله او تر څنګ مي ودرېدله. کابلي رحمت د مؤني په ليدو سره لار او ګودر ورک کړل؛ د مؤني تر سام (سهم) او اغېزې لاندي يې ژبه ټپه ودرېدله. وروسته يې کرار کرار زړَه ور غټ کئ؛ او په خندا خندا يې ور ته و ويل: «مؤني بابا! د خُسر کره ځې؟» البته، اوس د مؤني په دې خبره ښه سد رسيږي، چي خُسر او خُسر ګنۍ څه ته وايي. په دې خاطر يې نو نن د ماشومتوب په شان د رحمت د پوښتني جواب ور نه کئ؛ او له شرم و حيا څخه يې مخ بلي خوا ته واړاوه. په دې شېبو کښې مي، څو کاله مخکي، د مؤني او کابلي د ليدو کتو لومړنۍ روځ را ياد سوه. هغه روځ چي زه هم ور ته اندېښمن وم.

مؤني مي د کابلي تر ليدو وروسته، بېر ته وکور ته ولېږله. د مؤني تر خداى پامانۍ وروسته، رحمت سړه سا و ايستله؛ او پر مځکه کښېنستئ. د خيالو او سوچو په دؤنيا کښې ډؤب سو. پوه سو چي خپله لورکۍ بې هم په دؤنه وخت کښې مؤني غؤندي لو سوې يې؛ او اوس نو بايد د لويانو په ډَول خبري ور سره وکي. خداى ته مالومه ده، چي په دې اتو کلو کښې به پر هغې څه تېر سوي يي؛ او اوس بې څه حال يې؟ دا هغه پوښتني وې، چي ښايي د رحمت په زړَه کښې به ور ګرزېدې.

سهار ؤ. هر پلو د لمر زرينو وړانګو وزرونه غوړولي وه؛ او د شهنايي بږغ و هري خوا ته ازانګې کولې. رحمت چپه خوله ناست ؤ؛ داسي ايسېدئ، لکه په ستر ګو کښې چې د افغانستان دنګ دنګ غرونه ګرزي. هغه ته مي څه پيسې ورکړې؛ او ورته و مي ويل: «رحمته! دا پيسې واخله؛ او نور نو ژرتر ژره خان و خپلي لور ته ور و رسوه! ستاسو پلار او لور له ليدو کتو څخه به زما د مؤني په ژوند او واده کښې هم برکت ولوېږي.» رحمت ته د څه پيسو په ورکولو سره، ما د مؤني د واده خرڅونه يو څه کم کړل؛ د برېښنا د څراغو شمېر مو لږ کئ؛ بجه خانه مو را و نه غوښتله. که څه هم ښځې له دې جهته ډېري خواشيني سوې؛ خو ما يې پروا و نه کړه. د واده مراسم په ډېري خوشالۍ تر سره سول؛ او ما په دې توګه داسي روحاني خوښي تر لاسه کړه، چي ښايي د نړۍ د هر راز وسايلو او سامانو له را غونډولو څخه مي نه واى په برخه سوې.

لندن، ۲۰۰۵ع کال

**لمنليکونه:**

[۱] «والا» هندي کليمه ده، چې د شاوَندي يا پسوَند په بڼه د زياترو هندي الاصله ژبو، پښتو او دري په خورا ډېرو ترکيبي ټکو کښې کاريږي؛ د مثال په توګه په اؤردؤ، هندي او ځينو نورو هندو – آريايي ژبو کښې

وايي: دودهـ والا، ګهر والا، پولیس والا او داسي نور. د پښتو ژبې په جنوب – لوېدیځه لهجه کښې هم د «والا» شاوَندی یا وروستاړی په کټ مټ هندي بڼه باب دئ؛ مثلاً د دې لهجې ویونکي وايي: شیدې والا، مستې والا، کوروالا، دوکان والا او داسي نور. په دري کښې هم د «والا» ترکیب پراخ استعمال لري؛ لکه: شیر والا، ماست والا، چوب والا، دوکان والا او داسي نور. په دې ټولو ترکیبي ټکو کښې د «والا» شاوندی مالکي یا اضافي (**possessive/ genitive**) حالت ښيي. دا کلیمه له ګرامري پلوه په نیږدې راتلونکې زمانه کښې د یوه ټاکلي فعل پر کولو هم دلالت کیي؛ لکه: دېنې والا، لېنې والا، جانې والا، آنې والا او داسي نور.

«وال» د هندي «والا» لنډه بڼه ده، چي د «والا» تر څنګ په پښتو کښې پراخ استعمال لري؛ لکه: رودوال، سرپوزه وال، کوټه وال، کاروال او داسي نور. د پاړسي ژبې په پخوانیو متنو کښې هم د دې ټکي یو و نیم مثالونه لرو؛ لکه کوتوال چي له بده مرغه اوس له استعماله لوېدلئ دئ. هندي «والا» او پښتو «وال» دواړه له سنسکریت «پال» سره ایتیمولوژیک اړیکی لري.

نن سبا په پښتو کښې د «وال» ورستاړی خورا په پېخر کارېږي. پر خای کارول يې نه یوازي بدي نه لري، بلکي د ژبې د لغوي زېرمي د بډاینې او پراخولو په لار کښې ډېر ګټور کار ګڼل کیږي؛ خو په خواشینۍ سره چي د ژبې د «سوُچه» کولو د خپلسرو او غیرعلمي معیارو تر کرغېړن سیوري لاندي يې په ځینو مواردو او حالاتو کښې کاروَنه ډېره بې خونده او خندنۍ ښکاري؛ لکه په قلاتوال، هیلمندوال، غزني وال او داسي نورو کښې؛ ځکه د کابل، قلات، کندهار، هیلمند، غزني، پېښور او داسي نورو جغرافیایي سیمو نومونه هیڅکله له «وال» سره خوند او ښکلا نه لري؛ او نه هم زموږ د خلګو په ژبه او فرهنګ کښې جال دي. زموږ خلګ له عمرو راهیسي و داسي نومو ته «کابلی»، «قلاتی»، کنداری (کندهاری)، «هیلمندی»، «غزنیچی»، «بنوڅی»، «پېښوری»، «پکتیانی» او داسي نور استعمالیي. د «بلخ»، «لوګر»، «سرخاب» او داسي نورو سیمه ییزو نومو دپاره هم د «وال» شاوندی سم او خوندَور نه ښکاري. په پښتو او پاړسي کښې خلګ دا نومونه د «بلخي»، «لوګري»، «سرخابي» او داسي نورو په بڼه وايي. په دې ټکو کښې، چي له سوو کلونو راهیسي زموږ په خلګو کښې دود دي، د فصاحت او بلاغت ټول کمالونه (سادګي، اساني، عمومیت، ښکلا، موسیقیت او داسي نور) نغښتي دي. نتیجه دا چي موږ باید هیڅکله د «وال» شاوَندی په پټو سترګو له هر جغرافیایي نامه سره و نه تړو؛ او په دې توګه د خپلسرو معیارو په نامه، د خلګو په خوږه او سپېڅلې ژبه، ډېره او ملنډې و نه وهو. ټول پخواني ټکي لکه قلاتی، روزګانی، کنداری، هلیمندی، پېښوری، بنوڅی او داسي نور باید تل د «وال» له شره و ژغورل سي.

[۲] کولکته یا کلکته د ختیځ هندوستان دانګرېزي شرکت مرکز او تر (۱۹۱۱ع) کال پوري د برتانوي راج پلازمینه یا پایتخت ؤ.

[۳] ښکاري چي کیسه د ډیورنډ د منحوسي کرښي تر لاسلیک (۱۸۹۳ع کال) وروسته میاشتو او کلو کښې لیکل سوې يې.

لیکوال: ز نه فین



مترجم: واحد فقیري

# د سقراط تلپاته نظریات

دوهم کتاب

درېیم فصل

## سقراط دوه ورونه، چاریفون او چیار کراتس، پخلا کوي

دغه ورونه چاریفون او چیارکراتس نومېدل او پخپل مینځ کې هسي سره وران ول. د سقراط او هغوی اشنایي اوږده او پخوانۍ وه. سقراط په دې کارونو کې خاص مهارت او طریقه لرله. کله چې سقراط له چیارکراتس سره مخامخ سو، له هغه څخه ئې وپوښتل: «ایا ته د هغو کسانو له جملې څخه یې چې تر ورور لرلو شتمن کېدو ته ترجیح ورکوي؟ مانا هغه څوک چې دا نهویني چې سپین او سره هسي بې روح موجودات دي او د

بل چا دفاع ته اړتیا لري. حال دا چې یو ورور پخپل ذات کې تر ټولو ښه مدافع وي، او بل دا چې هسي هم په ژوندانه کې تل تر ورونو پیسې زیاتي وي. البته په داسي کسانو کي عموماً دا فکر او خیال وي چې که چیري ورور ئې تر مال ورته تېر نه سي، خپل ځان سره ئې لویه جفا ګڼي. همدا خلګ له ټولي دنیا څخه له دې کبله مرور وي چې ولي ئې دی د ټول انسانیت د ثروت خاوند کړی نه دئ. مګر همدا کسان په دې باور هم وي– البته ډېر

معقول انتخاب هم دئ– چي دا د دوی په ګټه ده چي په جامعه کي ژوند وکي، او په لږ مال او جايداد باندي قناعت وکړي، نسبت دې ته چي د خپل ګاوندي مال په زور واخلي، خو بيا ټولنه ئې د دې جرم په مقابل کي په اوږده يوازيتوب محکوم کړي؛ او له هغو خطرونو سره مخامخ سي چي په يوازيتوب کي خامخا ورسره مواجه کېږي. که چيري هغوی ثروتمن وي، هغوی د خپل ځان د خدمت له پاره غلامان رانيسي، هغوی داسي ملګري پيدا کوي چي د دوی سره مل وي، مګر د خپلو ورونو په برخه کي داسي غفلت کوي چي ته به وا يو ورور بنه ملګری کېدلای نه سي. مګر حقيقت دا دئ چي د ورونو تر مينځ بايد يارانه لا ښه وي، ځکه چي د يوه مور او پلار اولاد وي او په يوه کور کي ستر سوي وي. حتی حيوانات هم د خپلو ورونو او خويندو سره څه تمايل او علاقه ښيي، او هغه خيالونه ئې ور په يادېږي چي په يوه ځاله کي به سره اوسېدل او لوېدل. بلخوا، هغه څوک چي ورور لري، هغه په ټولنه کي وزن لري او خلګ احتياط کوي چي د هغه سره جنجال و نه کړي».

چيار کراتس سقراط ته داسي جواب ور کی:

«ته رشتيا وايې چي ښه ورور ستره نېکمرغي او خوشحالي ده، مګر دا چي د دې خبري د رد له پاره موجه او قانع کوونکي دلايل موجود وي. زه فکر کوم چي ورونه بايد د يو بل په مقابل کي څه حوصله او زغم ولري، او پر مازو خبرو او مسايلو باندي سره جلا او خپه نه سي. خو کله چي يو ورور په هر لحاظ بد وي، او کاملاً د ورور ګلوی په مقابل قطب کي ولاړ وي، ايا ستا په عقيده يو څوک بايد له داسي ورور سره مدام ښه وکړي، او بايد تل د يو داسي ناممکن کار کولو ته اوږه ور کړي؟»

سقراط په جواب کي ورته وويل: «ايا ستا ورور د ګرده عالم سره همدا ډول بد سلوک کوي لکه ستا سره چي ئې کوي؟ ايا له هغه څخه هيڅوک خوشحاله نه دی؟»

هغه وويل: «همدا هغه مهم دليل دئ چي زما کرکه ئې د خپل ورور په مقابل کي راپارولې ده، ځکه هغه چالاک او لشم دئ او تل نور خلګ له ځانه خوشحاله ساتي. مګر کله چي زما سره مخامخ سي، ته وا د هغه اصلي مرام او هدف دا دئ چي زما سره بايد جنګ او جنجال جوړ کړي.»

سقراط ورته وويل: «کله چي يو کس له يوه داسي آس څخه استفاده کوي چي په دې ښه پوهېږي چي د آس د مهارولو او کنټرول نه دئ، هغه کس بايد له دې سورلۍ څخه پرته له خطر او ستونزي د بل شي تمه و نه کړي. که چيري موږ په دې نه پوهېږو چي د خپلو ورونو سره څرنګه سلوک وکړو، ايا له هغوی څخه پرته له جنګ او غالمغاله د بل شي توقع کولای سو؟»

هغه په جواب کي وويل: «ته ولي داسي تصور کوې چي زه په دې نه پوهېږم چي د خپل ورور سره بايد څنګه سلوک وکړم؟ ځکه زه کولای سم چي هغه ته په خبرو او عمل کي هم مينه او هم احترام وښيم، او هغه هم کولای سي چي همدا کار وکړي. مګر کله چي زه ګورم چي يو څوک مدام په دې هڅه کي وي چي ما په يو راز نه بل راز وزهيروي، ايا زه بايد

له هغه څخه د ښه نیت تمه ولرم؟ نه؛ همدا کار زه نه سم کولای، او حتی د دې کار د کولو کوښښ به لا هم و نه کړم.»

سقراط ورته وویل: «زه ستا خبرو هک پک کړم. ته دا راته ووایه چې که چیري تا یو داسي سپی لرلای چې ستا رمه ئې ښه ساتلای، او ستا د شپانه ښه خدمتګار او وفادار مل وای، مګر هر کله چې ته ئې لیدلای داړي ئې درته سپینولای او درته غورېدلای؛ اوس نو، ایا دا به ښه وای چې سپي ته په قهر سوی وای، او که دا چې د هغه د خپلولو کوښښ دي کړی وای؟ تا مخکي وویل چې ښه ورور نېکمرغي او خوشحالي ده، او تا وویل چې ته د ورور ګلوي او وفادارۍ اصولو ته احترام لري، مګر ته همدا اصول د خپل ورور، چاریفون، سره نه عملي کوې».

هغه وویل: «زه معذرت غواړم ځکه زه د دې کار تر عهدې نه سم وتلای». سقراط وویل: «زه فکر کوم چې د دې کار د کولو له پاره فوق العاده مهارت ته اړتیا نسته؛ او البته زه یقین لرم چې ته په کافي اندازه د دې قابلیت او وړتیا لرې چې د خپل ورور سره همدا اصول پلي کړې، او هغه دې ته معتقد کړې چې ستا ښه وغواړي او ستا ورور ګلوي ته ارزښت کښېږدي».

هغه په جواب کي وویل: «سقراطه، اول خو ما ته څه دعا کوه. دوهم، که چیري تا ته یو داسي مهارت او چم در معلوم وي چې ما ته دا را وښیي چې زه ځان پر خپل ورور څرنګه ګران کړم، مهرباني کوه ژر تر ژره ئې راښیه، ځکه ما خو تر اوسه پوري داسي کوم علاج نه دئ میندلی». سقراط ورته وویل: «اول، ته زما د دې پوښتني جواب راکړه. که ته غواړې چې ستا یو ملګری تا یوې ښې مېلمستیا ته مېلمه کړي، ته باید څه وکړې؟» هغه په جواب کي وویل: «زه به هغه لومړی پخپل ځای او کور کي مېلمه او ونازوم». سقراط وویل: «که چیري ته وغواړې چې په غیاب کي کله چې ته په سفر وتلی یې، یو څوک ستا کاروبار او د ژوند نور کارونه سمبال کړي، ته به څه وکړې؟» چیرکراتیکس په جواب کي وویل: «ما به کوښښ کړی وای چې لومړی د هغه په غیاب کي د ده کارونه او کاروبار ورسمبال کاندم». سقراط بیا ورته وویل: «که چیري ته وغواړې چې یو خارجي کس تا د ده په هېواد کله چې ته هورې سفر کوې، پخپل کور کي ښه ونازوي او پالنه دي وکړي، ته باید څه وکړې؟» هغه وویل: «زه به هغه پخپل کور کي کله چې دی زما وطن ته راسي مېلمه کړم او ښه تود هرکلی به ئې وکړم. د هغه سره به په کارونو کي مرسته وکړم، ځکه زه غواړم چې هغه زما سره کله چې زه د هغه په وطن کي مسافر یم، همدا شان وضع وکړي». سقراط ورته وویل: « عجبه خبره دي وکړه. مانا دا چې ته ښه په دې پوهېږې چې څرنګه د خلګو ښه نظر ځانته راجلب کړې، مګر ته همدا کار نه کوې. ته له څه شی څخه وهم لرې چې دا میتود نه کاروې؟ ایا له دې څخه بېرېږې چې که چیري ته د خپل ورور سره مرحمت او ښه وکړې، ته به بد نیته او بد خلقه معلوم سې؟»

سقراط ادامه ورکړه: «باور وکه زما اندېواله چې په هغه صورت کي به ته هیڅکله

هم بدنيته او بد خلقه ښکاره نه سې. برعکس، زه عقيده لرم چې د يوه اتل او سخي روح خاصيت دا دئ چې د خپلو يارانو بد خلقي پخپل لطف سمه کړي، او په عين حال کې د غليمانو مخ په شهامت او مېړانه ونيسي. يقيناً، که چيري ما دا عقيده درلولادی چې ستا ورور – چيرافون – د پخلا کولو په فن کې تر تا ښه او مناسب سړی دئ، ما به ضرور دا هڅه کړې وای چې هغه مې دې ته هڅولی وای چې تا پخلا کړي. مگر زه گومان کوم چې ته د دې کار له پاره تر هغه مناسب کس يې، او زه فکر کوم چې ته تر خپل ورور دا کار ښه کولای سې».

هغه په جواب کې وويل: «څه چې ته ئې وايې بابېزه، مبتذل، او داسي خبري دي چې اظهار ئې ستا سره نه ښايي. ايا ته زما څخه غواړې چې زه د پخلا کېدو ابتکار پخپل لاس کې واخلم؟ زه د هغه کشر ورور يم. ايا ته په دې نه پوهېږې چې په ټولو ملتونو کې د افتتاح او ابتکار حق او امتياز د مشرانو دئ؟» سقراط ورته وويل: «څرنگه، او ستا مطلب څه دئ؟ ايا کشران بايد مشرانو ته احترام و نه کړي؟ کله چې مشر ورور راسي ايا کشر ورور بايد ورته ولاړ نه سي؟ مشر ته ښه ځای ور نه کړي، او د خبرو په کولو کې مشرانو ته حق د لومړيتوب ور نه کړي؟ لنډه دا چې بايد په هغو مسايلو کې هيڅ ځنډ و نه کړې چې زه ئې درته وايم: ولاړه سه او د خپل ورور د پخلا کولو هڅه وکړه. هغه به تا ته تود هرکلی ووايي او په غېږه کې به دې ونيسي. ځکه هغه يو داسي ملگری دئ چې په احترام ارزي، سخي او لوی زړه لري. د يوه محترم او درونډ سړي د گټلو له پاره بله هيڅ داسي اسانه لاره نه سته پرته له دې چې د هغه سره په احترام، مېړانه، او يارانه چلن وسي».

چيريکريتکس د اعتراض په توگه وويل: «که چيري زه همدا شيان چې تا وويل هغه وکړم، مگر بيا هم زما ورور ښه چم او رويه راسره و نه کړي، بيا به څه کېږي؟» سقراط وپوښتل: «تا ته به څه تاوان در ورسېږي؟ دا به ستا اخلاقي ښه والی وښيي، دا به هم څرگنده کړي چې هغه پر تا گران دئ، بل دا چې دا به د هغه بد خلقي او فطرت لا رابرسېره کړي، او دا به هم وښيي چې هغه د هيڅ چا سره وفا نه کوي. مگر زه عقيده لرم چې داسي به و نه سي، ځکه کله چې هغه تا ووينی چې ته د هغه سره ښه چلن کوې، زه يقين لرم چې هغه به پدې برخه کې وغواړي چې تر تا لا ښه سلوک در سره وکړي، او په دې سيالي کې تر تا مخکي سي. خو ها، ته همدا اوس په داسي بد حالت کې يې چې تصور ئې لا هم نه سې کولای. ته په داسي يو وضعيت کې ئې چې گواکي لاسونه چې خدای موږ ته د دې له پاره راکړي دي چې د يو بل سره مرسته وکړي، مگر ستا په حالت کې داسي عيار سوي چې د يو بل خنډ سي. کله داسي چې پښې کوم چې لوی خدای په دې مقصد انسانانو ته ورکړي دي چې د تگ په وخت کې د يو بل سره کومک وکړي، مگر همدا دوې پښې شپه و ورځ په دې لگيا وي چې څرنگه د يو بل تگ سوکه او مختل کړي. ايا دا به يو لوی جهالت او په عين زمان کې يوه

پاته په ١٢٩ مخ کې ...



ژباړن: سعید لودین/کاناډا

# سیګیسمنډ فرایډ
## او د انسان د درو نفسونو نظریه ئې



سیګیسمنډ سکلوموفرایډ (Sigismund Schlomo Freud) د ارواپوهنې په دنیا کې یو رسېدلی او منلی ارواپوه وو. هغه د ۱۸۵۶ کال د مې پر شپږمه د آسټریا په یوې یهودي کورنۍ کې زېږېدلی او د ۱۹۳۹ کال د سپټمبر پر ۲۳ په لندن انګلینډ کې د زامې له سرطان څخه مړ سوی دئ. فرایډ د روحي تحلیل (psychoanalysis) پلار بلل کېږي. هغه په ۱۸۸۱ع کې د وییانا له پوهنتون څخه په طب کې دوکتوره اخیستې وه او وروسته د وییانا په جنرل هاسپیټل کې پر عصبي جوړښت، ګونګواله او نورو عصبي امراضو تر څېړنو وروسته په ۱۹۰۲ کې د پروفیسرۍ

درجې ته ورسېدی. فرایډ د خپل پلار له دریمې مایني څخه زېږېدلی دئ.

پلار ئې د پمبوو تجار وو او اقتصادي حالت ئې ښه نه وو. فرایډ له کوچنیوالي ډېر ځیرک وو. د تحصیل په دوره کي ئې تل په لوړو درجو کامیابۍ تر لاسه کړي دي. هغه په وییانا روغتون کي تر څلورکلني خدمت وروسته خپل شخصي کلنیک خلاص کړ او په سلهاوو عصبي ناروغان ئې په کامیابۍ تداوي کړل. فرایډ په ۲۴ کلنۍ کي سګریټ څکول پیل کړل چي وروسته ئې دا عادت سیګارو ته بدل سو او ډېر سیګار څکولو ئې د زامې سرطان ور واچاوه چي همدې مرض مړ هم کړ.

فرایډ په ارواپوهنه کي ۲۲ مستقل آثار او په سوونو مقالې لیکلي دي. په ۱۹۳۳ کي چي هټلر جرمني ونیوی نو د فرایډ آثار ئې ټول وسوځل. فرایډ ډیر خپه سو او دا خبره ئې ډېره مشهوره سوه چي ویل به یې: "موږ هم عجب پرمختګ کړی دئ. په تېره زمانه کي به ئې زه سوځلای اوس ئې زما د کتابونو په سوځولو بسنه کړې ده". په ۱۹۲۰ کي ئې د اید، ایګو او سوپر ایګو نظریه وړاندي کړه چي د دې دلچسپي نظریې لوستلو ئې زه و دې ترجمې ته وهڅولم.

د فرایډ دا نظریه د قران له هغه خبر سره ډېر ورته والی لري چي د انسان د درو نفسونو په اړه ئې راکړی دئ. په قرانکریم کي د انسان درې نفسونه د نفس الاماره بسوء، نفس الوامه او نفس المطمئنه په نومونو را ښوول سوي دي چي ایتیسټ فرایډ ئې د خپلو اوږدو څېړنو وروسته په یو څه تغیر د اید، ایګو او سوپرایګو ( Super Ego, Ego, Id )په نومونو را پېژني.

**د اید**(The id):

اید د شخصیت طبیعي خو غریزه اي حصه ده. دا زموږ د روح یا نفس هغه برخه ده چي حالاتو ته بې له فکره ژر او مستقیم عکس العمل ښیي. د نوي زوکړي کوچني شخصیت ټوله اید وي چي وروسته ایګو او سوپر ایګو په خان کي پیدا کوي. اید تل د خپلو غوښتنو پوره کول ژر تر ژره غواړي او کله چي دا کار وسي نو موږ خوشحالي احساسوو، خو که پوره نه سي نو بیا خپګان او درد احساسوو. اید له روزمره دنیا، حقیقت او منطقو څخه نه متاثره کیږي. علاوه پر دې اید تل د لذت پر اصولو عمل کوي دا یعني هر ارمان او غوښتنه ئې باید بې له د هغه له عواقبو سنجولو ژر تر ژره پوره کړه سي.

**د ایګو** (The Ego):

ایګو په اصل کي د اید هغه برخه ده چي د خارجي دنیا له مستقیمي اغېزې څخه اغېزمنه سوې ده. (فرایډ ۱۹۲۳) ایګو وروسته په شخصیت کي په دې پیدا کیږي چي د غیرحقیقي اید او د خارجي حقیقي دنیا تر منځ منځګړیتوب وکړي. دا د شخصیت هغه برخه ده چي فیصلې کوي. ایګو په دلیل کار کوي خو اید بیا غیرمنظم او بالکل بې دلیله وي. ایګو د حقیقي اصولو په رڼا کي کار کوي. داسي حقیقي لاري لټوي چي د اید و غوښتنو ته جواب په ووایي، اکثره وخت د ځان تر رضائیت تېرېږي او یا د مصلحت لار غوره کوي چي د ټولني له خوا د منفي پایلو څخه ځان

وژغوري. ایګو تل د ټولني حقیقتونه، ټولنیز اصول، اخلاق او قوانین په نظر کي نیولو سره فیصله کوي چي څنګه برخورد وکړي. ایګو لکه ایډ تل غواړي لذت تر لاسه کړي او له درد څخه ځان وژغوري خو د ایډ د طریقې په ډول نه بلکي د یوې حقیقي ستراتیژۍ په اختراع کولو لذت تر لاسه کول غواړي. فرایډ ایډ یو آس غوندي قیاس کړی دئ او ایګو ئې پر هغه سپور ځغلوونکی. "ایګو د هغه سړي په څېر دئ چي پر آس سپور وي او د آس د قوت قیضه ئې په لاس کي وي" (فرایډ ۱۹۲۵).

نظر و زورور ایډ ته ایګو اکثره وخت کمزوره وي خو ښه به دا وي چي شکست و نه خوري او تر پایه ایډ سمي لار ته راوبولي او په اخیر کي یو څه امتیاز هم ځان ته واخلي ګواکي دا ښه کار ده کړی دئ. ایګو د ښه او بد په مفهوم نه پوهېږي. په ډېره ساده توګه، ده (ایګو) ته ښه هغه دئ چي په تر لاسه کولو کي ئې ده او ایډ ته تاوان نه وي رسولی.

**سوپرایګو:**

سوپرایګو په ځان کي ټولنیز معیار او اخلاق رانغاړي، کوم چي له والدینو څخه زده کېږي. دا له درې کلنۍ څخه تر پنځه کلنۍ پوري په انسانانو کي پیدا کېږي. د سوپر ایګو کار دا دئ چي د ایډ تحرکات کنټرول کړي خصوصاً هغه چي په ټولنه کي منع وي لکه جنسي اړیکي او تجاوز. سوپر ایګو دا هم کوي چي ایګو له یوازي حقیقي هدفونو څخه و اخلاقي هدفونو ته سوق کړي او هدف ئې و کمال ته رسېدل کړي.

لاندي د فرایډ یو څو نقل قولونه هم ولولئ:

"هغه مهمه پوښتنه چي په عمر جواب سوې نه ده او ما هم تر خپلو دېرش کلنیو څېړنو وروسته چي د ښځو په ارواپوهنه کي مي کړي وې جواب نه کړای سوای دا پوښتنه ده: "ښځه اصلن غواړي څه شي؟".

"ما ته د یوه کوچني له پاره په کوچنیوالي کي تر بل هر ضرورت د پلار له خوا د تحفظ درلودل ډېر ضروري ښکاري".

"اکثره خلک اصلاً آزادي غواړي نه ځکه له آزادۍ سره مسئولیت تړلی وي او اکثره خلکو ته بیا مسئولیت لو بلا ایسي".

"ما په مجموع کي د انسانانو په اره ډېر لږ ښه وموندل - ما ته له تجربو څخه معلومه سوه چي ټول کثافات دي، دا که په ښکاره وي او یا اخلاقي ډول. دا هغه څه دي چي موږ ئې په لوړ آواز ویلای هم نه سو او یا خو ئې په اړه فکر هم نه سو کولای".

"هغه اول انسان چي مقابل طرف ئې د ډبري پر ځای په ښکنځلو وویشت د تمدن بنسټ ایښودونکی دئ".

"د ژوند هدف مرګ دئ".

"هر ځای ته چي ولاړ سم راته معلومه سي چي شاعر زما تر مخه ورته راغلی وي".

"هو امریکا لو ده خو یوه لو تېروتنه ده".

"فردي آزادي د تمدن تحفه نه ده ځکه آزادي هغه وخت تر هر څه لوړه وه چي تمدن لا نه وو". "هغه څوک بې باوره دئ چي ژوند ئې د خپلو عقایدو پر خلاف وي".

"د تمدن اول خواهش چي دئ عدالت دئ".

لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثاراحمد آریا

# نوبل جایزه وړونکي ادیبان

# رډیارډ کپلنګ

(Rudyard Kipling)

(۳۰ دسمبر ۱۸۶۵م–۱۸ جنوري ۱۹۳۶م)

**(یوولسمه برخه)**

د کپلنګ پلار جان لاګ ووډ کپلنګ یو عالم او فاضل شخص وو. نوموړي له ادبیاتو سره ژوره مینه درلوده او د خپل زوی پر اثارو ئې ژور اغېز درلود. هغه یو وخت د لاهور د موزیم مسئول وو. کپلنګ د خپل پلار دغه وخت د خپل نامتو ناول (Kim) په لومړي څپرکي کي بیان کړی دئ. د کپلنګ مور ایلس مکډونلډ درې خویندي لرلې. د هغه خاله ګانو له ایډورډ برن جونز (Edward Burne Jones)، ایډورډ پوینټر (Edward Poynter) او الفریډ بالډون (Alfred Baldwin) سره ودونه وکړل. د وروستۍ خاله زوی ئې سټینلې بالډون (Stanley Baldwin) وو. هغه د برتانیا صدراعظم وټاکل سو. دغه اړیکو د کپلنګ پر ژوند مهم اغېز وکړ.

کپلنګ د هندوستان په بمبیي کي پیدا سو. د هغه کوچنیواله ډېره خوندوره نه وه. نوموړی شپږ کلن وو، چي کورنۍ ئې لندن ته بوتلی. پنځه کلونه هغه له والدینو څخه لیري وو. په دې مهال کي په یوه (ساوت سي؟) کور کي د هغه پالنه کېده. نوموړي په ۱۸۸۸م کي د (Baa Baa, Black Sheep) په نامه یوه کیسه خپره کړه. په دغه کیسه هغه د یاد سوي کور په اړه خپل احساسات بیان کړه. له دې وروسته هغه یونایټیډ سروسز کالج ته ولېږل سو. دغه نوی او ارزانه پوهنځی له آبادۍ څخه بېه لیري وو. په دغه ځای کي چي کپلنګ له کومو تجربو سره مخ سو، د هغو اغېز د ژوند تر پایه پر هغه مسلط وو. په ۱۸۹۹م کي د نوموړي یوه بله کیسه د(Stalky & Co) په

نامه خپره سوه. په دغه ليکنه کې نوموړي د پوهنځي د دوران څرکونه معلومېږي.

په ۱۸۸۲م کې کپلنګ بېرته هندوستان ته ولاړی. هورې ئې څو کاله په مطبوعاتو کې کار وکی. که څه هم د هغه کورنۍ د يادوني وړ دندې نه لرلې، خو بيا ئې هم له ځايي او لوړو چارواکو سره ښې اړيکې درلودې. د دې اړيکو له امله کپلنګ ته دا موقع مساعده سوه، چې د لوړي طبقې د ژوند کره، وره ووينې. همدارنګه هغه د هند د عامو خلکو د ژوندانه ژوره مطالعه هم وکړه. نوموړي له کوچنيوالي له کليوالي ژوند سره دلچسپي درلوده، همدا لامل وو، چې د هغه قلم ډېر ژر روان سو. هغه له څو ورځپاڼو سره اړيکي لرلې. نوموړی کرار، کرار د ادبي ټوټو د ليکوال او ميانه شاعر په توګه وپېژندل سو. په ۱۸۸٦م کې ئې د (Departmental Ditties) په نامه لومړۍ شعري ټولګه چاپ سوه. همدارنګه په ۱۸۸۸م کې ئې د (Plain Tales from the Hills) تر عنوان لاندي د لنډو کيسو مجموعه راووته. تر ۱۸۸۹م پوري ئې د لنډو کيسو شپږ مجموعې چاپ سوې. د دې ټولګو له جملې څخه ئې درو مجموعو (Three Soldiers)، (The Phantom Rickshaw) او (Wee Willie Winkie) خاص شهرت ترلاسه کړ. د هغه په دوهمه مجموعه کې (The Man Who Would be King) نومې لنډه کيسه شامله وه او همدارنګه (Baa Baa, Black Sheep) نومې کيسه ئې په دريمه مجموعه کې راغلې وه.

په ۱۸۸۹م کې چې کپلنګ انګليستان ته بيرته ولاړی، نو شهرت ئې تر ده مخکي هورې رسېدلی وو. د يوه کال په جريان کي نوموړی د خپل وخت په ښو نثر ليکونکو کي حساب سو. په ۱۸۹۲م کي ئې د (Barrak Room Ballads) په نامه د لنډو کيسو بله مجموعه چاپ سوه. دې مجموعې د هغه نوم لا وځلاوه. نوموړی تر لارډ بايرن وروسته دوهم کس وو، چې دونده ژر ئې ډېر شهرت ترلاسه کړ. کله چې په ۱۸۹۲م ملک الشعرا لارډ ټيني سن (Lord Tennyson) ومړ، نو خلکو ډېر ژر کپلنګ د هغه پر درانه مقام وټاکی. په همدې کال کپلنګ د امريکايي ليکوال او خپرندوی والکاټ بيلسټير (Wolcott Balestier) له خور کرولين سره واده وکړ. په ۱۸۹۲م کي والکاټ د کپلنګ بل اثر (The Naulakha) خپور کی.

دغه نوي جوړې ډېر ژر د امريکا پر خوا مخه کړه او هلته ئې د کرولين په کور کي واړول. دغه ځای د امريکا په (ورمونټ) کي موقعيت درلود. ګاونډيانو د دې ځواني جوړې د ټولنيز ژوند پر ډول خورا سختي نيوکي وکړې. کله چې کپلنګ په دې کي پاته راغی، چې ځان د امريکايي ژوند په خم کي رنګ کي نو بيرته انګليستان ته ولاړی. له دې وروسته کپلنګ د همېش له پاره امريکايانو ته د بهرنيانو په سترګه کتل. هغه د فرانسويانو تر څنګ امريکايان هم په هغه ليست کي شامل کړل، چې نوموړي ئې په اړه دا يادونه کوله "د انګليستان له پولو ها خوا ته کم اصل خلک اوسي"

په امريکا کي د اوسېدو پر مهال (په ۱۸۹۰م کي) د نوموړي يو بل ناول د (The Light That Failed) په نامه چاپ سو. د دغه ناول کيسه د يو داسي انځورګر په اړه ده، چې له ړندېدو وروسته د خپلې معشوقې له توهين اميزه چلند سره مخ دئ. په ۱۸۹۷م کي ئې د (Captains Courageous) په نامه ناول خپور سو. دغه ناول ماجرايي رنګ لري او له لفاظيو ډک دئ. له د ې امله کره کتونکي دا يو کمزوری ناول ګڼي. په همدې کال ئې د کيسو

یوه ټولګه د (The Jungle Book) په نامه هم خپره سوه. په دغه کتاب کي هغه له هغو نظمونو سره کیسې هم ملګري کړې، چي د کوچنیانو له پاره ئې لیکلي ول. په ۱۹۰۱م کي هغه د کوچنیانو له پاره د (Kim) په نامه یو بل کتاب ولیکی. پورتنیو آثارو د نوموړي په اړه دا خبره روښانه کړه، چي کپلنګ پر کیسه لیکنه برلاسی دئ، خو د یو متوازن ناول په لیکلو کي ستونزي لري.



په ۱۹۰۲م کي کپلنګ په (برواش، سسکس) کي کور رانیوی او تر مرګه په همدې کور و اوسېد. له دې وروسته د هغه په ډېرو لیکنو کي د سسکس چاپېریال تر سترګو کېږي. په دې برخه کي د هغه دوه کتابونه د ځانګړي یادوني وړ دي. له دې جملې څخه ئې لومړی اثر د (Puck of Poo's Hill) په نامه یو ناول وو. دغه ناول په ۱۹۰۶م کي خپور سو او دوهم اثر ئې د (Rewards and Fairies) په نامه په ۱۹۱۰ کي خپور سو. که څه هم دغه دواړه آثار د انګرېزي تاریخ ډراماتیکه بڼه ده، خو پر دې سربېره په دې دواړو آثارو کي د کپلنګ د وجدان د عمق څرګونه معلومېږي. په ۱۹۰۷م کي نوموړي ته نوبل جایزه ورکړه سوه.

کپلنګ په جنوبي افریقا کي هم د یادوني وړ وخت تېر کی. د دې هیواد د الماسو نامتو سوداګر او سیاسي شخصیت سسل رهوډز (Cecil Rhodes) نوموړي ته د هستوګني له پاره کور ورکړی وو. د رهوډز سره د دوستۍ له امله په هغه کي امپریالیستي تمایلات پیدا سول. دغه تمایلات ورځ تر بلي غښتلي سول. کپلنګ پر دې ټینګه عقیده درلوده، چي پر هر انګرېز او سپین پوستي باندي دا فرض ده، چي هغه د افریقا په وروسته پاته استعماري سیمو کي اروپایي ثقافت معرفي کړي . هغه تر استعمار لاندي سیمو خلک وروسته پاته او پس مانده ګڼل. د هغه افکار د معاصري روشنفکرۍ سره په ټکر کي ول. همدا لامل وو، چي هغه ورځ په ورځ د یوازیتوب خوا ته تلی او بلاخره نوموړی د پنځم جارج تر مړیني دوې ورځي مخکي ومړ. ډېر خلک په دې باور دي، چي پنځم جارج تر نوموړي په دې کي ډېر بریالی وو، چي په خپل وخت کي د یو انګرېز استازیتوب وکي.

د نونسمي پېړۍ په اواخرو او د شلمي پېړۍ په پیل کي د کپلنګ کیسو او نظمونو خورا ډېر مینه وال درلودل، خو تر لومړي نړیوال جنګ وروسته د یو سنجیده لیکوال په

توګه د هغه شهرت پیکه سو. په دې وخت کې خلکو نوموړي ته د استعمار پلوه شخص په سترګه کتل. که څه هم ځینو نامتو نقادانو لکه ټي ایس ایلیټ (T.S.Eliot) دا هڅه وکړه، چې نوموړی د یو لوی شاعر په توګه معرفي کړي، خو د خلکو له خوا د یو لوی شاعر په توګه ونه منل سو. کپلنګ ښه شاعري کوله. هغه په شاعرۍ کې د عادي جنګیالیو او ملاحانو ژبه کاروله. همدا لامل وو، چې نوموړي په یوه ځانګړې ډله کې مینه وال درلودل. په بنسټیز ډول نوموړی د فکر شاعر نه بلل کېږي، ځکه چې د هغه په کیسه یزو نظمونو کې تر خیال او فکر احساسات ډېر لیدل کېږي. البته د نوموړي نثر بیا داسې نه دئ. د هغه د کیسه لیکنې هنر په پرلپسې توګه د پرمختګ په حال کې وو. که څوک په هندوستان کې د اوسېدو له مهاله او بیا په ترتیب سره په ۱۸۹۱م، ۱۸۹۳م، ۱۸۹۸م، ۱۹۰۴م، ۱۹۰۹م، ۱۹۲۶م او ۱۹۳۲م کې د هغه خپرې سوي لیکنې (Life's Handicap)، (Many Inventions)، (The Debits)، (Actions and Reactions)، (Traffics and Discoveries)، (Day's Work and Credits) او (Limits and Renewals) مطالعه کړي، نو ورته څرګنده به سي، چې د هغه هنر مخ پر پرمختګ دئ. د وخت په تېرېدو سره د نوموړي په کیسه کې د مرکزي خیال عنصر غښتلی سوی دئ. په دې کیسو کې هم د (The Phantom Rickshaw) د مجموعې د کیسو غوندې مافوق الفطرت چاپېریال تر سترګو کېږي. په ۱۹۲۴م کې د نوموړي یوه بله ټولګه د (The Wish House) په نامه چاپ سوه. په دې کیسو کې هم پورتنی تکنیک په خورا ظرافت سره کارول سوی دئ. همدارنګه په ۱۹۱۵م کې د هغه یو بل اثر د (Mary Postage) په نامه چاپ سو. نوموړي په دې اثر کې هم د خپل پخواني اثر (The Man Who Was) په څېر د سپېڅلي وطن پرستۍ احساسات ځای پر ځای کړي دي. په وروستیو کلونو کې د هغه له لیکنو سره د خلکو د دلچسپۍ د لږوالي یو علت دا وو، چې نوموړي د خپلو لیکنو په طرز کې بدلون راوستی. نوموړي به د خپلو لیکنو موضوع د دې پر ځای چې په مستقیم ډول ئې وړاندې کړي، په پېچلي ډول سره وړاندې کوله. د کیسو مرکزي خیال ئې ناڅرګند او کمزوری وو. پر دغو تخنیکي کمزوریو سربېره د هغه متعصبه سیاسي نظریات هم د دې لامل سول، چې د دغه ادیب مقبولیت متاثره کړي.

البته په ډاډ سره ویل کېدلای سي، چې کپلنګ تر ډېره بریده د کوچنیانو له پاره خورا ښې او بریالۍ لیکنې وکړې. نوموړي په ۱۹۰۲م کې یو اثر د (Just So Stories) په نامه خپور کی. دغه اثر د ټاندو کوچنیانو له پاره وو، خو د هغه د نورو آثارو لکه (The Jungle Books)، (Puck of Pook's Hills)، او (Rewards and Fairies) د لوستونکو دایره ډېره پراخه وه. د نوموړي یو بل اثر د (From Sea to Sea) په نامه دئ. دغه اثر د نوموړي په متفرقه آثارو کې تر ټولو مهم ګڼل کېږي. د یاد سوي کتاب محتوا هغه طرحي دي، چې نوموړي د سیاحت پر مهال لیکلي وې.

کپلنګ د شلمي پېړۍ د درېیمي لسیزې تر لومړیو پوري خپلو لیکنو ته دوام ورکړ. د وخت په تېرېدو سره ئې د لیکنو کمیت لږ سو او پخوانی مقبولیت او بریالیتوب ئې هم له لاسه ورکی. نوموړی په ۱۹۳۶م کې د عصبي تکلیف له امله مړ سو. تر مړیني وروسته ئې مقبولیت لا مخ پر زوال سو. اوسمهال دا پرېکړه کول یو ستونزمن کار دئ،

چي نوموړی په سترو لیکوالانو کي حساب کړل سي، که نه؟ کله چي د اروپا استعماري ځواکونه مات سول او د شلمي پېړۍ په نیمايي کي د کمیونزم اغېزې خپرې سوې، نو د کپلنګ آثار د زمانې په دردونه خوړل. ځیني کسان چي کله استعماريت تر غندي، نو په دې وخت کي کپلنګ هم غندي، دا ځکه چي د دوی له پاره دا ستونزمن وي، چي استعماريت او کپلنګ سره جلا کړي. البته دلته دا خبره د یادوني وړ ده، چي موږ باید داسي ونه کړو، موږ باید استعماريت او کپلنګ په جلا، جلا ډول تر نقد لاندي ونیسو.

که څوک د کپلنګ تر مرګ وروسته نژدې زمانه مطالعه کړي، نو دا خبره به ورته روښانه سي، چي تر اروپایانو زیات امریکایي ادیبانو هغه خپله ورثه وګاڼه. ساینس فکشن لیکوال جان ډبلیو کمپبل (John W. Campbell) نوموړی خپل ائیډیل معرفي کی.

د کپلنګ د ژوند په زمانه کي نوموړي ته تر ډېره بریده د شاعر په سترګه کتل کېده، خو اوسمهال هغه ته تر ډېره بریده د کوچنیانو د ادیب په سترګه کتل کېږي. په ۱۹۳۹م کي چي کله د هغه مېرمن وفات سوه، نو (نېشنل ټرسټ) د هغه د سسکس کور په خپله ولکه کي واخیست او د یو موزیم په توګه ئې وساتی.

د کپلنګ د ځینو آثارو لنډ وضاحت په لاندي ډول دئ:

۱. کیم (Kim):

کیم یو تاند ایرلنډی هلک دئ، چي په لاهور کي اوسیږي. هغه پرېکړه کوي، چي د تبت[1] له یوه لامه[2] سره د هغه رود په لټه ووزي، چي په هغه کي تر لمبېدو وروسته ئې ګناهونه پاک سي. کیم د دغه ښار د ګرینډ ټرنک واټ(G.T. Road) ننداره کوي. دغه سړک د بېلابېلو نسلونو، قومونو او مذهبونو له خلکو څخه ډک دئ. دغه خلک د هندوستان د پېچلي تاریخ او ثقافت استازیتوب کوي. کیم یو چالاکه هلک دئ. نوموړی د خپل خدای ورکړي استعداد په مټ له هر ډول خلکو سره دخان عیارولو وړتیا لري. هغه د نېک او ښه خوی څښتن لامه تر مختلفو خلکو باسي. د آسانو افغان سوداګر محبوب علي د کیم له دغه استعداد څخه خورا اغېزمن کېږي. افغان سوداګر کیم له یو شفري لیک سره ډګروال کریټن (Col. Crighton) ته ور استوي. ډګروال د کیم له استعداد څخه په هغه ستره لوبه (Great Game) کي کار اخلي، چي د روسیې له لوري د جنوب لویدیځ هندوستان د لاندي کولو د اهدافو پر ضد جوړه سوې ده.

کیم یو ایرلنډي کنډک ته په لاس ورځي. هغوی کیم یوې عسکري یتیم خانې ته د لېږلو له پاره روانوي. په دې حال کي لامه او کریټن د کنډک په چارو کي مداخله کوي او هغه د یتیم خانې پر ځای د ریاضي، نقشې لیکني او په ستره لوبه کي د اړتیا وړ نورو مهارتونو له پاره سینټ زیویئر (St. Xavier) ښوونځي ته لېږي. په دغه ځای کي د لرګن صاحب (Lurgon Sahib) په نامه یو کس هغه ټرینوي او وروسته نوموړی له یوه بنګالي سپین ږیري سره د تبت غرنیو سیمو ته د یو پلان له پاره لېږل کېږي. هلته نوموړی له روسي جاسوسانو څخه د یوې سروې معلومات غلا کوي. له دې وروسته هغه په دې کي زړه نازړه کېږي، چي د لامه د جنت په لټه کي سي

[1] تبت د چین هغه سیمه ده، چي پخوا د تبت د خپلواک هیواد په توګه پېژندل کېده.

[2] د تبتي بودایزم مذهبي لارښود.

او که د ستري لوبي په دې خیریه کار کې برخه واخلي. کیم د دې ذهني زړه نازړه توب له امله ناروغه کېږي. یوه بوډۍ ښځه په کورنیو درملو سره د هغه درملنه کوي. په دې مهال کې لامه هغه رود هم پیدا کوي او نوموړي ته بلنه ورکوي، چې ورسي او د دنیاوي غرضونو او تېروتنو څخه د پاکۍ له پاره پکښې ولامبي. بل لور ته محبوب علي هم هغه ته په تمه دئ، چې ورسي او هغه ته د سلطنت د خدمت له پاره یو بل کار ور وسپاري. د کیم پر همدې زړه نازړه توب ناول پای ته رسېږي.

کیم یو یتیم هلک وي. هغه په ذهني توګه څو کسانو ته د پلار په سترګه ګوري، خو له محبوب علي او لامه سره د هغه دغه ذهني اړیکه خورا غښتلې وي. دغه دواړه نارینه کرکټرونه د کیم د زړه نازړه توب یوه سمبولکه عکاسي ده، چې هغه ځان هندوستانی وبولي او که انګرېز؟ که څه هم د هغه مور او پلار کاکیشین؟ ول، خو نوموړی د یوې انګلو انډیني (Englo Indian) مېرمني له خوا په هندوستان کې روزل سوی وي.

۲.(The Light That Failed):

د کپلنګ دغه ناول په ۱۸۹۰م کي چاپ سو. د ناول اتل د ډیک (Dick) په نامه یو یتیم هلک دئ. په ناول کي د نوموړي د زړوري مبارزې انځور وړاندي سوی دئ. په ناول کي لومړی د ډیک د تاندي ځوانۍ حال راغلی دئ او بیا وروسته د هغه د دندې حال لولو. نوموړی د یو جنګي خبریال په توګه په سوډان کي د برتانیې د جګړو تصویر وړاندي کوي. له دې وروسته ډیک بیرته لندن ته ځي او هلته د یو داسي تصویر په رسمولو شروع کوي، چې د نوموړي په خیال یو شاهکار تصویر به وي.

د جګړې د تېرونو له امله د هغه سترګي ورځ په ورځ بینایي له لاسه ورکوي، خو هغه هڅه کوي، چې د وخت له پرمختګ سره اړه پر اوړه ولاړ سي. هغه هر وخت له مشکلو فیصلو او انتخابونو سره مخامخ وي. له دې انتخابونو او فیصلو څخه یو شمېر په دې ډول وي. هغه باید پرېکړه وکړي، چې پرسکونه او ارام لندن د اوسېدو له پاره غوره کړي، که له ستونزو ډکه خو حیرانونکې افریقا؟ همدارنګه هغه اړ وي، چې له سوداګرۍ او تخلیقي هنر څخه یو انتخاب کړي. هغه باید د بازارۍ او ناباوره ښځي او وفاداره ملګري څخه یو انتخاب کړي. تر ټولو ستونزمنه لا دا چې هغه باید پرېکړه وکړي، چې مهذبه برتانیه او که تر استعمار لاندي غیر مهذبي سیمي انتخاب کړي.

کپلنګ دغه ناول ته دوې پایلي ورکړي دي. لومړۍ پایله ئې هغه ده، چې دغه ناول په ۱۸۹۰م کي د (Lippincott's) په نامه په یوې میاشتنۍ مجله کي خپور سو. دغه پایله یوه هیله بخښونکې پایله ګڼل کېږي. دوهمه پایله هغه ده، کله چې دغه ناول په کتابي بڼه چاپ سو. دغه پایله ئې بیا پر نهیلۍ ولاړه ده.

۳. (Captians Courageous):

د دغه ناول پوره نوم (Captians Courageous A Story of the Grand Banks) دئ. د کپلنګ د نوموړي ناول کیسه د سمندر پر ماجراوو باندي راګرځي. یادی سوی ناول په لومړي پلا په ۱۸۹۶م کي د (Mc Clure's) په نامه مجله کي په پرلپسې ډول چاپ سو او بیا وروسته په ۱۸۹۷م کي په کتابي بڼه خپور سو. د ناول ډېري پېښي د (We're Here) په نامه په یوه کوچنۍ کښتۍ کي پېښېږي. د دې کب نیونکي کښتۍ کارکوونکي د ناول مرکزي کرکټر هاروي

چیني(Harvey Cheyne) له ډوبېدو څخه ژغوري. د ناول دغه کرکټر د بحري سفر پر مهال په سمندر کي لوېدلی وي. د کښتۍ کپتان چي کله هغه له سمندر څخه راوباسي، نو هغه د خپلي کښتۍ د کارکونکي په توگه وگماري. د ناول پاته برخه د هاروې د طبیعت او خوی پر بدلېدو راڅرخي او لوستونکي ته دا ورښوول کېږي، چي د یو شتمن پلار نازولی، لټ او متکبر زوی د درنو او سختو کارونو د کولو له امله څنگه په یو ښه او زیارکښ ځوان بدلیږي. همدارنگه دغه ناول لوستونکي ته دا هم ورښیي، چي یو ځوان له ساده ژوند سره څنگه عیاریږي، هغه پر خپلو پښو څنگه درېدای سي؟ او دغه ارزښتونه د هغه له پاره څونده ضروري دي.

۴. (The Jungle Book):

د کپلنگ د کیسو دغه ټولگه په ۱۸۹۴م کي چاپ سوه. همدارنگه په ۱۸۹۵م کي د (The Second Jungle Book) په نامه یو بل کتاب هم چاپ سو. د دغه کتابونو کیسو ته د نظمونو په واسطه یو له بل سره تړاو ورکول سوی دئ. د یادو سویو کتابونو د ډېرو کیسو چاپېریال هندوستان دئ. که څه هم دا کیسې د کوچنیانو دادب برخه گڼل کېږي، خو لویان هم دلچسپي ورسره ښکاره کوي. د دې کیسو له جملې څخه د ډېرو کیسو مرکزي کرکټر د موگلي (Mowgli) په نامه یو هندوستانی هلک دئ. دغه هلک له زېږېدو څخه لږ وروسته د لېوانو لاس ته ورسي او هغه ئې لوی کړي. موگلي له حیوانانو څخه پوهه او پر ځان بسیا کېدنه زده کوي.

په نوموړي کتاب کي د لېوانو ټولنیز ژوند خورا په خوندره توگه بیان سوی دئ او د ځنگلي ژوند د فطري نظم او انصاف بیان پکښي راغلی دئ. په دې کیسو کي ځنگلي حیوانان لکه د اکیلا په نامه لېوه، د بهالو په نامه خږ ایږ، د موگلي دښمن مغرور بنگالی زمری شېر خان او د هغه نوکر طباقي، چي یو گیدړ دئ د کیسو د کرکټرونو په توگه وړاندي سوي دي. پر دوی سربېره په دې کیسو کي د کا (Kaa) په نامه اږدهار، د بگهیرا په نامه پړانگ او د یوې شوخي گیدړي حال هم بیان سوی دئ. په یاد سوي کتاب کي حیوانان د انسانانو په څېر نه بلکي د هغوی په فطري ډول وړاندي سوي دي. له دې ناول څخه په استفادې سره دوه فلمونه جوړ سوي دي. له دې جملې څخه لومړی فلم په ۱۹۴۲م کي د (The Jungle Book) په نامه جوړ سو او دوهم ئې د (والټ ډزني) له لوري په کارټوني بڼه جوړ سو.

۵. (If):

دا د کپلنگ ډېر نامتو نظم دئ، چي په ۱۸۹۵م کي ئې کښلی دئ. دغه نظم په لومړي پلا په ۱۹۱۰م کي د نوموړي په یوه کسیزه ټولگه (Rewards and Fairies ) کي چاپ سو. کره کتونکي په دې باور دي، چي کپلنگ دغه نظم د ډاکټر لینډر ستر جیمسن (Dr. Leander Starr Jameson) د شخصیت تر اغېز لاندي لیکلی دئ. نوموړی هغه څوک وو، چي د (بوئري) افریقایانو په خلاف ئې په ۱۸۹۵م کي د برتانوي فوج د حملې قومانده ورکوله. که څه هم دغو حملو د بوئري جنگ په موښلولو کي بنسټیز رول درلود، خو برتانوي مطبوعاتو جیمسن ته د اتل او دغه بایللي جنگ ته د بري رنگ ورکړ. د نوموړي دغه نظم تر بل هر نظم په ډېرو مجموعو کي چاپ سوی دئ. د بي. بي. سي د راپور په حواله دغه نظم په برتانیه کي تر نورو ټولو نظمونو ډېر مینه وال درلودل.

لنډه کیسه:

لیکوال: انتون چخوف



ژباړه: نجیب الله زیارمل
بُن - جرمني

# ښځه له کوچني سپي سره

ویل کېده، چي د ساحل پر غاړه نوې څېره را پیدا سوې ده: مېرمن له کوچني سپي سره.

دمیتري دمیتریچ گوروف، چي له دوو اونیو راهیسي په تفریحي ښار یالتا کي تفریح کوي او دلته ئې عادت نیولی دئ، هم دې ته لیوال وو، چي نوې څېره وویني. هغه تر لوی سایوان لاندي ناست وو، چي په رښتیا د ساحل غاړي ته نژدې یوه ځوانه ښځه، چي میانه قد، خورمایي ورېښتان لري او پوستي خولۍ ئې پر سر وه، تیره سوه او سپین لنډې ببر سپی په پسې وو.

تر دې وروسته، ده دا ښځه د ورځي څو واري په عامه باغ او د قدم وهلو په ځای کي لیده. د هغې به هماغه پوستي خولۍ پر سر وه او یوازي به له سپین سپي سره گرځېده؛ هیڅوک نه پوهېده، چي هغه څوک ده، او نوموله ئې ډېره ساده: ښځه له کوچني سپي سره.

ګوروف له ځان سره په فکر کې سو،- «که هغه [ښځه] دلته د مېړه او دوستانو ماسوا تفریح کوي،- نو بده به نه وي چې له هغې سره و پېژني.»

ګوروف لا ځلوېښت کلنۍ ته نه وو رسېدلی، خو یوه دوولس کلنه لور او دوه زامن ئې درلودل، چې په لېسه کې ول. ده ته ئې ډېر وختي، کله چې لا د فاکولتې په دوهم صنف کې وو، واده ورکړی وو، ځکه ئې نو اوس مېرمن پر هغه باندې دوه برابره مشره ایسېده. دا جګه لوړه ښځه، د تورو وروځو لرونکې، رشتیا ویونکې، او لکه څرنګه چې ئې خپله ویل د ښه فکر خاونده وه. هغې ډېره مطالعه کوله، خو څه ئې نه کښل، مېړه به ئې د دمیتري پر ځای په رسمي ښه دیمیتري باله، خو ده به له ځان سره دا ډېره تنګ نظره او کښته بلله، له دې ځخه بېرېدئ او په کور کې پاته کېدل خوند نه ورکاوه. له هغې سره ئې بې وفایي وختي لا شروع کړې وه، او هر وخت به ئې دا کار کاوه، ښایي په همدې خاطر به ئې اکثره وخت د ښځو پر وړاندې منفي عکس العمل ښوودئ، او کله چې به د ده په موجودیت کې د هغوی په اړه څه ویل کېده، نو ده به دوی داسې نومولې:

– تر ټولو کښته طایفه!

ده ته داسې ښکارېده، چې تر خو تجربو هر څه ور زده کړي دي، د پوره پوهې خاوند دئ، او په هر ډول چې غواړي په هغه راز ښځې و نوموي. خو په هرحال ده به بې له هماغې «کښته طایفې» دوې ورځې هم ژوند نه وای کړی. د نارینه وو په ټولنه کې به د هغه ډېر نفس تنګېدئ. په حال کې به نه وو، له هغوی سره به ئې خبرې نه کولې، چپه خوله به ناست وو، خو کله چې به له ښځو سره کښېناست، نو ډېر به ئې ځان هوسا احساساوه او په دې پوهېدئ، چې پر څه باندې ور سره وږغېږي او ځان څرنګه وښیي؛ او حتی له هغوی سره چپ پاته کېدل د ده له پاره اسانه ول. د ده په څېرې، کړو وړو، او ټول ذات کې یو ډول داسې غیر محسوسوونکی جذابیت نغښتی وو چې د ښځو توجه به ئې ځان ته راجلبوله؛ دی په دې پوهیدئ، او پخپله ئې هم ددې توان درلود چې ښځې ځان ته متوجه کړي.

مکررو تجربو، په زیاته بیا ترخو تجربو، وختي لا ده ته دا ښوولې وه، چې په ژوند کې هرډول نزدیوالی، چې په لومړي سرکي ډېرخوږ او په اسانۍ سره تیرېږي، ډېري ستونزې پیداکوي. په دغه شان حالاتو کې بیا، سنګین خلک په تیره بیا مسکویان ډیر سست دي. څوک چې په هرډول فوق العاده حالت کې هم وي چې تصمیم و نه لري او زړه نا زړه وي، اخیر دغه حالت ورته مشکل کیږي. خو د ګوروف به بیا له هرډول نوي جذابې ښځې سره د ملاقات په وخت کې دا ازماینښتونه ناببره له حافظې څخه وتل، او زړه ته ئې لوېدلې ول چې ژوندهمدا ډول وي، او ټول ورته داسې اسانه او ټوکې ښکارېدې.

دا دئ یوه ورځ ناوخته ماپښین، ده د باغ په هوټل کې د غرمې ډوډۍ خوړله، هماغه مېرمن چې پوستي خولۍ ئې پر سروه، کوچنی سپین سپی په پسې وو، په سړه سینه،

بې له تلواره راغله، او د ده د څنګ مېز ته کښېناسته.

د هغې څېرې، تګ، کالي او يو بغل ته ږمونځ کړو ورېښتانو ده ته دا ويل، چې هغه مړوښې، او له يوې پتمنې کورنۍ څخه ده، او دا ئې اول وار دئ، چې يالتا ته راغلې ده او هغه هم يوازې، دا دلته ډېره ديغ ده... په هغو نکلونو کې چې د کليوالي خويونو د ناپاکۍ په اړه پکې ډېر رشتيا نه ويل کېږي او په يالتا کې به هروخت خلکو يوبل ته سره کول، ده به کرکه ځنې کوله او له خانه سره به ئې ويل، چې دغه شان نکلونه اکثره د هغو خلکو له خوا جوړېږي چې که چېري ئې په وسه واى نو پخپله به ئې هم له ډېرې خوښۍ سره ګناه وې کړې واى. خو کله چې دغه ناآشنا مېرمن له ده څخه درې ګامه ليرې د ده دڅنګ مېز ته کښېنسته، ده ته اسانه مقصد ته رسېدل، د غرونو سفرونه او د تير ايستونکو او ژر تېرېدونکو اړيکو د ساتلو نکلونه په فکر کې ور وګرځېدل، او د هغه رومان په چورت کې ډوب سو، چې که ئې يووار داسې يوه ناآشنا ښځه په اختيار کې سوه چې نه ئې پېژني، نه اېژني.

ګوروف په نرمي اشارې سره د هغې سپی را وغوښت، او کله چې هغه د ده وخواته ورنږدې سو، ده د تهديد په شان ګوته ورته وښوروله. سپي وغرړل. ګوروف بيا ګوته ورته وښوروله. ښځې ده ته په يوه نظر وکتل او سمدلاسه ئې ستر ګې کښته واچولې.

– هغه خوله نه اچوي، – هغې دونه وويل او له شرمه يې مخ تک سور سو.

– اجازه ده چې ده ته هډوکي ورکم؟– کله چې دې د هو په مانا سر وښوراوه، ده په ورين تندي ځنې وپوښتل:

– تاسي ډېر وخت کيږي چې يالتا ته مو تشريف راوړئ دئ؟

– پنځه ورځي کيږي.

– زما بيا دا ده دوهمه اوونۍ پوره کېږي.

د لنډ وخت له پاره دواړه چپ ول.

هغې چې ده ته نه کتل وئې وويل:

– وخت ډېر ژر تيرېږي، او پر دې سربېره دلته داسي نفس تنګي ده!

– دا اوس يو رواج ګرځېدلی دئ، چې وايي، دلته نفس تنګي ده. خپله به په بليوف يا ږيزدرا غوندي سيمو کي (د روسيې دوه ښارونه دي چې خراب سوي ول) ژوند کوي، چې له ډېرو دوړو او ګرمۍ څخه د سړي بڼه پربله اوړي، خو کله چې دلته راسي: «آخ، نفس تنګي ده! آخ دوړي دي!» لکه دی چې د غرناطې (د هسپانيا يو ښار) څخه راغلی وي.

دې په کټ کټ سره وخندل. بيا دواړو لکه ناآشنا په چپه خوله ډوډۍ خوړلو ته دوام ورکړ، خو تر غرمنۍ وروسته دواړه څنګ پرڅنګ روان سول– او نرمي، خندوري خبري پيل سوې. آزاد، خوښ خوشاله خلک دي، چاته چې بې توپيره ده، هر چيري چې ولاړسي، او پر هر څه چې وي وږغېږي. هغوی قدم واهه او پردې باندي ږغېدل، چې درياب عجب روښانه دئ، د تکو شنو اوبو پرسر د سپوږمۍ طلايي پټه ګرځېده. دوئ پردې ږغېدل، چې تر ډېري ګرمي ورځي وروسته ځرنګه تربوختي ده. ګورف خپل بيان ورته

شروع کړ. چي دی مسکوی دئ، په ژبپوهنه کي ئې لوړي زده کړي کړي دي، مګر په بانک کي نوکر دئ، یو وخت ئې دې ته تیاری نیوئ چي په یوه شخصي اوپرا کي سندري ووایي. خو پرې ئې نښووله. په مسکو کي دوه کوره لري... له هغې څخه بیا ده واورېدل، چي په پیتربورګ کي لو سوې ده، او دوه کاله کېږي، چي مېړه ئې بیا په «س. ښار» کي کړی دئ. دې وویل، چي په یالتا کي یوه میاشت نوره هم پاتېږي، او کېدای سي چي مېړه ئې هم پسې راسي، ځکه هغه هم غواړي چي استراحت وکړي. هغې دا نه سوای توضیح کولای، چي مېړه ئې چیري کار کوي، – په ولایت، او که په ښاروالۍ کي، دا دې ته پخپله هم د خندا وړ وه. ګوروف په دې هم پوه سو، چي دا انا سرګیونا نومېږي.

کله چي ګوروف کوټې ته ولاړ په دې چورت کي ډوب سو، چي سبا باید هغه حتماً له دې سره مخامخ سي.

کله چي ګوروف په بستر کي وغځېد، د آنا سرګیونا هغه خبره ور په یاد سوه، چي دا په دې نژدې وختو کي له یوې علمي موسسې څخه فارغه سوې ده، لکه د ده لور چي لېسې ته تلله او درس ئې وایه. ده پر دې باندي هم فکر کاوه چي له یوه ناآشنا سره د هغې په خبرو او خندا کي څوندي بې زړه توب او لیریوالی وو، – دا باید د دې په ژوند کي لومړی وار وي، چي یوازي ده، په داسي یوه حالت کي چي څوک په هغې پسې وي او ورته ګوري، او له هغې سره خبري یوازي د یوه پټ مقصد له پاره کوي، چي دا ئې حتی اټکل هم کولای نه سي.

بیا د هغې نرمه نرۍ غاړه، او ښایسته خړي سترګي ور په یاد سوې.

ګوروف له ځان سره چورت واهه، –«خو له دې ټولو سره سره په دې کي د زړه سوي یو څه سته»، – اوځان ئې خوب ته ورکړ.

له هغې ورځي راهیسي چي دوی سره پېژندلي دي، یوه اوونۍ تیره سوه. د جشن ورځ وه. په خونو کي تربوختي وه، توند باد را الوتی وو، په کوڅو کي خاوري اورېدې، او له سرو څخه ئې خولۍ وړلې. ټوله ورځ د تندي احساس کېدی، ګورف هر ګړی غرفې ته تلی اوآنا سرګیونا ته به ئې یا خوږې اوبه، او یا به ئې آیسکریم راوړی. هیڅ خوا ته نسوای وتلای. ماښام، کله چي باد لږ کرار سو، نو دواړه د لنګر اچولو ځای ته ولاړل، چي د بخاري کښتۍ د راتلو ننداره وکړي. د لنګراچولو په ځای کي ډېرو خلګو قدم واهه؛ د یوشمېر ئې د ګلانو ګېډۍ په لاسو کي وې، داسي ښکارېدل، لکه د یو چا مخ ته چي ور وتلي وي. دلته وو، چي د یالتا د سینګارکړو خلګو په بیروبار کي په څرګند ډول دوې ځانګړتیاوي د چا په سترګو ورننوتلې: یوه داچي مسنو ښځو د پېغلو په شان کالي اغوستي ول، او بل جنرالان ډېر ول. په سیند کي د تصادفي څپو له امله کښتۍ ناوخته هغه مهال چي لمر لوېدلی وو راورسېده. تر دې دمخه چي کښتۍ د لنګر ځای ته رانژدې سي ډېر وخت سره پرله ګرځېده. آنا سرګیونا کښتۍ او مسافروته په دوربین کي کتل، لکه شناخته چې ئې پکي لټول، او کله چي ئې ګوروف ته مخ ور واړاوه، نو سترګي ئې ځلېدې. هغې ډېري خبري کولې،

او پوښتني به ئې هم بې مورده وې، داسي چي د دې به پخپله په هغه ګړی هیره سوه، چي په څه اړه ئې پوښتنه وکړه؛ وروسته ئې د خلګو په بیروبار کي دوربین هم ورک کړ.

د معمرو خلګو بیروبار سره تیت سو، نور نو هیڅوک نه په سترګه کېدل، باد ښخي کرارسوی وو، خو ګوروف او آنا سرګیونا داسي ولاړ ول، لکه له کښتۍ څخه چي معلومداره نور څوک هم را وځي. آنا سرګیونا نور چپه خوله ولاړه وه، ګورف ته ئې نه کتل، ګلان ئې بویول.

– د شپې خواته هوا ښه سوه، – ګورف وویل. – اوس نو موږ چیري ځو؟ کومي خواته نه ځو؟

هغې هیڅ جواب ور نه کړ.

ده په ځیر ځیر ورته وکتل د هغې پر شونډو ئې د ګلانو بوی احساس کړ او نابېره ئې غېږ باندي راوګرځوله، پر شونډو ئې مچ کړه، او ژر ئې بیرته شاوخوا وکتل: چاخو ونه لیدو؟

کرار ئې ورته وویل – راځه چي ستا کوټې ته ولاړ سو...

او دواړه چټک روان سول.

د هغې په کوټه کي تر بوختي وه، د هغو عطرو بوی وو، چي په یوه جاپانۍ مغازه کي ئې رانیولي وه، ګروف، هغې ته کتل او په چورت کي ډوب سو: «په ژوند کي عجبه ډول ډول ملاقات وي!» له تیرو ملاقاتونو ده ته د بې پروا سینه ناکو ښځو، چي د عشق په وخت کي به له ده څخه راضي او خوشاله وې، خاطرې ور په یاد سوې. هغه که ډیر لنډ وخت هم وو: د مثال په ډول، خپله مینه ئې ورپه یاد سوه، – چي مینه ورسره ربښتینې نه وه. د ده هغه بې ځایه، او په عصباني ډول خبري ورپه یاد سوې، لکه هغه چي نه مینه نه هوس، بلکي یو بل ډول با ارزښته څه وه؛ او همدارنګه هغه دوې درې ډیري ښایستې، خونسردي ښځي ورپه یاد سوې، چي په سر ټمبګۍ سره غوښتنه ځني وسي او نابېره ئې د مخ ښه والوزي او په ژوند کي تر هغه څه ډیر ځني پرې کړي، چي ورکولای ئې سي. دا د دې بې عقلو ښځو لومړۍ ځواني هم نه وه، چي فکر کول ئې په اختیار کي نه ول، او کله چي به ګوروف سوړ سو، نو د دوی ښایست به په ده کي یو ډول نفرت پیدا کاوه او پر دوی باندي به راګرځېدلې روجایي ده داسي احساسوله لکه د اغزو چي ډکه وي.

خو دلته بیا هم هغه د ځوانۍ بې تجربه والی، بې زړه توب، نا ارامه احساس؛ او د وارخطایي اغېزه وه، دې ته داسي ښکاره سوه لکه یو څوک چي نابېره دروازه وټکوي. اناسرګیونا، هغه «مېرمن له سپي سره»، داسي ښکارېده، چي دې د هغه څه په وړاندي چي پیښ سول، ډیر جدي غبرګون وښود، په تیره بیا له خپل تسلیمیدو سره، چي دا ډیر د تعجب وړ او بې ځایه عمل وو. د هغې د مخ پر دواړو خواو خوشاله اوږده وریښتان غمجن را ایله سول، هغې چي دواړه زنګنونه ځیګرته ورکړي او لاسونه ئې باندي راګرځولي ناسته وه، په چورت کي ئې خان له هغې ګناهکاري ښځي سره سم کړ، چي په یوه زړه تابلو کي ئې لیدلې وه.

- ښه کار و نه سو - هغې وویل. - لومړی خو تاسو اوس ما ته نور هیڅ احترام نه لرئ.

په کوټه کې پر مېز باندې هندوانه پرته وه. ګوروف یوه دړه څنې پرېکړه او کرار ئې په خوړلو پیل وکړ. تقریباً نیم ساعت په چوپتیا کې تیر سو.

آنا سرګیونا حیرانه پاته وه، د هغې له حرکاتو څخه داسې ښکاریده، چې هغه له ډیرو پاکو او ساده وو ژوندیو ښځو څخه ده؛ دا پرمېز باندې د یوازیني شم په رڼا کې داسې ښکارېده، چې په زړه کې ئې ډیره ناارامي ده.

ګوروف و پوښتل - په څه خاطر به زه نور ستا احترام نه کوم؟- ته پخپله نه پوهیږې چې څه وایې.

هغې وویل، خدای دې ما وبخښي!- او سمدلاسه ئې سترګې د اوښکو ډکې سوې.- دا ډیره بده سوه.

- ته په ریشتیا حق ثابتوې.

د څه له پاره زه حق ثابت کړم؟ زه لیونۍ، پسته ښځه یم، زه پخپله ځان ته په سپکه سترګه ګورم او د حق ثابتولو په اړه زه هیڅ فکر نه کوم. ما مېړه نه، بلکې خپل ځان مې ختاایست او دا نه یوازې اوس، بلکې له ډیر پخوا راهیسې ئې ختاباسم. زما مېړه، شاید پاک او ښه سړی وي، خو هغه نوکر دئ! زه نه پوهیږم چې هغه هلته څه کوي، څرنګه خدمت کوي، خو یوازې دومره پوهیږم چې هغه نوکر دئ. هغه وخت چې ما له ده سره واده وکړ، زه شل کلنه وم، ما ته کنجکاوۍ تکلیف راکاوه، ما غوښتل تر دې یو څه ښه وکړم؛ له ځان سره به مې ویل،- یو بل ډول ژوند هم سته. غوښتل مې ژوند وکړم! ژوند وکړم او ژوند وکړم ... کنجکاوۍ زه سوځلم... تاسو په دې نه پوهیږئ، خو په خدای قسم، ما نسوای کولای چې پر ځان باندې حاکمیت ولرم، په ما یوڅه سوي وه، په ځان نه پوهیدم، زه چا نسوای راګرځولای، ما مېړه ته وویل، چې ډیره خفه یم، لکه یو چا چې تر ستوني نیولې یم، دغه وو چې دې خواته مې سفر وکړ... او دلته داسې بې سده ګرځیدم، لکه سکرو چې په مغزو نیولې وم...

او دا دئ زما څخه یوه فاحشه، ناشولتې ښځه جوړه سوه، چې هر رکم خلګ کولای سي په سپکه سترګه راته وګوري.

پر ګوروف باندې نور په ضعیفه او غمجن آواز د دې ډول خبرو او نابېره بې ځایه پښېمانیو اوریدل غمېدلي وه؛ که چیري د هغې سترګې د اوښکو ډکې نه وای، نو کیدای سوای چا فکر کړی وای، چې دا ټوکې کوي یا کوم رول لوبوي.

ګوروف کرار وویل،- زه نه پوهیږم، ته څه غواړې؟

هغې د هغه پر ځیګر مخ کښېښود او ټینګه پورې و موښته.

انا ویل، باور وکړئ، په ما باور وکړئ، ستاسو څخه هیله کوم ...- زه غواړم پاک او رښتنی ژوند ولرم، خو زما خبیثې ګناه په برخه ده، زه خپله نه پوهیږم چې څه کوم. عام خلګ د داسې انسانانو په اړه لکه زه چې یم وایي: هغه شیطان ختاایستلې ده. نو اوس زه خپل په اړه ویلای سم، چې زه شیطان ختاایستلې یم.

گورف تر ژبې لاندې وويل:- ښخې، ښخې...

گورف د هغې و بې حرکته، ښېرېدلو سترگوته کتل، پر شونډو ئې مچول او له هغې سره ئې په کرار او نازولي ږغ خبري کولې، هغه وو، چې لږ څه ارامه سوه او خوشحالي بيرته ور ته را وگرځيده او دواړه په خندا سول.

وروسته، کله چې هغوی دباندې ووتل، په ساحلي جاده کي د انسان ذات نه وو، ښار له خپلو ښايستو ناجوگانو او د سبر له ونو سره د مړي ښه درلوده، خو درياب لا غورې وهلې او ځپې ئې د ساحل له غاړي څخه موښتې؛ يوه کوچنۍ کښتۍ د ځپو پر سر زنگېده، او پکي د خوب په حالت کي يو څراغ لگيد.

يوه بگۍ ئې پيدا کړه او بگۍ وان هغه ته ئې وويل، چې ارياندا ته ئې ورسوي.(اريياندا په يالتا کي د تفريح له پاره يوه لوړه سرسبزه تپه ده، چې له هغه ځايه درياب ښه ترا معلوميږي.)

گوروف وويل:- زه اوس هلته لاندې د لاري پر سر ستا په کورني نوم خبر سوم: پر تخته ليکل سوي وه، فون ديدريخ،- ستا مېړه جرمنی دئ؟

نه، فکر کوم چې د هغه نيکه الماني وو، خو دی پخپله ارتدکس دئ.

په اريياندا کي کليسا ته نژدې، پر اوږده چوکۍ باندې چپ ناست او لاندې ئې درياب ته کتل. د سهار وختي غبار له کبله، يالتا په ډېره سختۍ سره ليده کيده، د غرونو پر سرو باندې بې حرکته سپيني وريځې ولاړي وې، د ونو برگونه نه ښوريدل، د چور چرکو ناري وې، او له لاندې څخه د درياب يو ډول تيز شور ماشور، د ډېري آرامۍ او ابدي خوب حکايت کاوه، چې مونږ ته انتظار باسي. درياب هغه وخت هم دغسي غورې وهلې چې نه د يالتا او نه هم د اريياندا البوشاکه وه، اوس هم دغسي غورې وهي او هغه وخت به هم دغه شان په بې دردۍ او په زوره غورې وهي چې زمونږ بولگه هم نه وي. په دې پايښت کي مونږ هر يو په بې علاقه گۍ سره، له مرگ او ژوند څخه پټيږو، شايد زمونږ د هر ډول ژغورلو، د مځکي پر سر د هر ډول حرکاتو او د پرلپسې بشپړتيا له پاره يو ضمانت موجود وي. د داسي يوې ځواني ښځي څنگ ته کښېناستل، چې د سپيده داغ پر وخت ئې ښکلا، آرامي او جذابيت له چا څخه زړه وړي، او د داسي افسانوي منظرې- درياب، غرونه، وريځې او پراخ اسمان. گوروف په دې چورت کي وو، چې که څوک په ريښتيا سره وگوري په دې دنيا کي هر څه ښايسته دي، هرڅه، بې له هغه څه چې مونږ ئې په فکر کي جوړ وو او د ژوندانه لوړ هدفونه او انساني لياقت هېر وو.

دوی دواړه په چورت کي ډوب ناست ول، چې يو څوک د دوی خواته ورغلی- بايد پيره دار وي- دوی ته ئې وکتل او بيرته ولاړ. دا ټول داسي د اسرارو ډک او ښايسته ښکاره سول. د هغه اوگوټ ننداره ئې هم وکړه، چې له فيودوسيا څخه راورسيد، او د سهار د لمر د واړنگو په خاطر يې اور نه ښکارېدئ.

آنا سرگيونا چوپتيا ماته کړه او ويې ويل:- پر چمن پرخه پرته ده.

بلې د کور وخت دئ.

هغوی بیرته ښار ته راغلل.

وروسته ئې هره ورځ د غرمې خوا ته د ساحل د قدم وهلو په ځای کي سره لیدل، سهارناری او غرمنۍ به ئې کول، قدم به ئې واهه، د دریاب له ښکلا سره به ئې خوشحالي کول. هغې له دې ځخه شکایت کاوه، چې خوب نه ورځي او زړه ئې ټینګ دربیږي، همدا یو شان سوالونه به ئې هر ګړی تکرارول، یو وار به له بدبینۍ او بیا به له دې بیري ځخه چې دی ئې احترام نه کوي په تشویش کي وه. هر وخت، چې به د قدم وهلو په ځای او یا عامه باغ کي دوی ته نژدې څوک نه ول، ده به نابېره پر هغې باندي غېږه راوګرځول او شهوتي به ئې مچوله. بېکارۍ، دغه په سپینه ورځ تلواري او د بیري مچې، ګرمۍ، د دریاب بوی، او دم ګړی د اولنیو خیتورو خلګو تر سترګو کیدل، داسي ښکاریده، لکه په ده کي چې ئې بدلون راوستی وي؛ هغه آنا سرګیونا ته د دې د ښکلا په اړه خبري کولې، چې څرنګه ښایسته ده، څومره جذابه ده. ده له دې سره په بې صبرۍ لیوالتیا ښوولـه، له هغې ځخه یو قدم هم نه لیري کیدئ، خو دا به هر وخت په فکر کي وه او له ده ځخه ئې غوښتل چې دا ومني، چې دې ته احترام نه لري، مینه نه ورسره لري، او یوازي په دې کي د پستي ښځي خصوصیاتویني. تقریباً هر شپه ناوخته به دواړه له ښار ځخه د باندي یو چیري، اریاندا یا افشارو ته تلل؛ قدم وهل به ډېر ښه تیریدل او ډېر ژور تاثیرات به ئې پریښوول.

دوی د آنا سرګیونا د مېړه و راتګ ته لار څارل، خو د هغه له خوا لیک راورسید، چې د خپلو سترګو د خوږیدو خبر ئې پکې ورکړی وو. او ماینې ته ئې زارۍ کړي وې چې بې له ځنډه کورته بیرته را وګرځي. آنا سرګیونا تلوار وکړ.

هغې ګوروف ته وویل:- دا ډېر ښه دئ، چې زه ځم، قسمت دغسي دئ.

انا د اورګاډۍ تر تم ځای پوري چې یوه ورځ لار ده په بګۍ کي ولاړه، او ګورف بدرګه کړه. کله چې دا په اورګاډۍ کي سپره سوه او د حرکت کولو دوهم زنګ ووهل سو، هغې وویل:- پرېږده، چې زه یوار تاسو ته په ځیر وګورم ... یو وار بیا دغه ډول درته وګورم.

هغې نه ژړل، خو ډېره خفه وه، په ریشتیا په عذاب وه، او مخ ئې سور و شین کیدی.

- زه به ستاسو په فکر کي یم ... یادوم به مو، - الله مو مل سه، پاته سئ دلې. زما په اړه بد فکر ونه کړئ. موږ د تل له پاره سره جلا کیږو، دا باید دغسي هم وي، ځکه په کار نه وه چې سره ووینو. ښه، الله مو ساتندوی سه.

اورګاډۍ ګړندی حرکت وکړ، ډېر ژر ئې د اور لمبې تر سترګو نیهامي سوې، او یو آن وروسته یې نور ږوږ هم نه اوریدل کېدئ، ریشتیا ټوله داسي سره برابر سول، لکه په لاس چې جوړ سوي وي، چې دې خوږې بې هوښۍ او لیونتوب ته د پای ټکی کښېږدي. د اورګاډۍ په تم ځای کي پاته او دې اوږده

تاریکه واټن ته په کتو سره، ګوروف د ملخانو و نارو او د تلګراف د نازکو سیمانو بوزهاري ته په داسي یو احساس غوږ نیولی وو، لکه تازه چي له خوبه راویښ سوی وي او د هغه څه په اړه فکر کوي، چي دا دئ په ژوند کي مي یوه بله قضیه یا عشقبازي هم وه، او هغه هم ختمه سوه، او یوازي ئې یادونه پاته سوه... هغه په عذاب، غمجن، او لږ پښیماني ښووله، ځکه هغه خوانه ښځه چي دی بیا هیڅکله نسي ورسره لیدای، د ده په بغل کي خوشحاله نه وه؛ ګوروف پر هغې ډېر مهرباني او زړه سوی درلود، خو بیا هم کله چي به ده، هغې ته رجوع کوله، په ناز او آواز کي به ئې یو ډول طعنې او ملنډي نغښتي وې، دغه خوشکیتي او مغروره نارینه پر نور څه سربیره پر هغې باندي دوه برابره مشر وو. هر وخت به هغې دی ډېر ښه، مهربانه او غیر معمولي ډېر لوړ سړی باله؛ یقیني خبره ده، چي دی هغې ته داسي نه ښکاریدئ، لکه په عمل کي چي وو، په دې معنی چي هغه ئې په نارضایتي سره ختا ایستله...

د اورګاډي په تم ځای کي هوا نور د مني بوی کاوه، شپه سړه وه.

«نور نو ددې وخت دئ چي زه هم د شمال خواته ولاړسم،- د اورګاډي له تم ځای څخه د وتلو پر وخت ګوروف له خان سره فکر وکړ، وخت ئې دئ!»

د مسکو په کور کي نور هرڅه د ژمي ښه درلوده، بخاریو ته اور اچول کیدی، او کله چي به سهار کو چنیانو د مکتب له پاره تیاری نیاوه او د سهار چای به ئې څښنلې تاریکه به وه، نو د کور مزدوري به د لنډ وخت له پاره اور لګاوه. نور نو په کوڅو کي یخی دریدئ. کله چي لومړی واوره اوري، په اوله ورځ د واوري په بګۍ کي تګ، ډېر په زړه پوري وي. په دغه ورځ سپیني مځکي او سپینو بامونو ته چي ځوک ګوري، ښه نرم نفس کښل کیږي، او په دې وخت کي چا ته د ځوانۍ کلونه ور په یادیږي. زړې زینتي او لیمویي وني چي تر یخی سوي شبنم لاندي تکي سپیني ښکاري، چاته د مهربانۍ جار وهي، دغه وني د سبر او خرما تر ونو لا د چا زړه ته ور نژدې دي، او د هغو په بغل کي څوک نه غواړي چي نور د غرونو او سیندونو په فکر کي اوسي.

ګوروف مسکوی وو، هغه مسکو ته په ډېره سړه ورځ ورسېد، خو کله چي ئې پوستین او تودې دستکلې واغوستې بیا نو پیتروکا(د مسکو یوه مشوره جاده) ته د قدم وهلو له پاره ولاړ، او کله چي ئې د یکشنبې په شپه ماښام د کلیساو د زنګولو کړنګی واورید، نو وروستي سفر او هغه ځای چي دی پکي د لنډ وخت له پاره اوسېدئ، ټول احساس ئې ور وران کړی وو. کرار- کرار هغه د مسکو په ژوند کي غوټه کېدئ، له ډېره حرصه څخه به ئې د ورځي درې ورځپاڼي لوستلې او ویل به ئې، چي ګردسره د مسکو ورځپاڼي نه لولي. هغه یو وار بیا د شپې کلپونو، د غرمنۍ دعوتونو او د جشنونو هوسونو کشاوه، او ده په دې فخر کاوه، چي کور ته ئې نامتو مدافع وکیلان او هنرمندان ورځي، او دا چي د ډاکټرانو په کلپ کي هغه له پروفیسر سره پتي کوي. اوس هغه

کولای سوای چي یو کړایي کتغ یوازي وخوري...

میاشت لا نه وه تیره سوې. خو ده ته داسي ځرګندېده چي آنا سرګیونا نور د ده په حافظه کي خوپه سوې ده او یوازي به کله نا کله له اغیز ناکي موسکا سره په خوب کي ورته راځي، لکه هغه نوري چي ورته راتللې. خو تر یوې میاشتي د ډېر وخت په تیریدو سره، کله چي مطلق ژمی سو په حافظه کي هر څه روښانه وه، لکه دی چي له آنا سرګیونا څخه پرون جلا سوئ وي او خاطرې ئې ډیري ټینګي تازه کیدې. آیا د شپې په آرامۍ کي به د اولادو هغه ږغونه چي د مکتب له پاره به ئې تیاری نیاوه د ده تر غوږو پوري ورتلل، آیا ده هغه په زړه پوري ساز اورید، چي په رستورانت کي به چالانه وو او یا به ده هغه توپان اورېد، چي په بخارۍ کي به ئې انګولل، څرنګه هرڅه نابېره ټول په حافظه کي راژوندي سول: په بندر کي د ساحل پر غاړه باندي قدم وهل، یو سهار پر غرو باندي د پراته غبار تماشا، او د فیودوسیا کښتۍ، او هغه ښکلا. ګورف ډیر په کوټه کي سره ګرځید را ګرځېد او خاطرې ئې په یادولې او خندل یې، او وروسته دا خاطرې په ورځني خیالونو اوښتې. تیرو سوو خیالونو په هغه څه کي مداخله کوله چي په آینده کي به پیښېږي. آنا سرګیونا ده ته یوازي په خوب نه ورتله، بلکي په هغه پسي به هر چیري لکه سایه پسې وه او دی ئې تعقیباوه، چي سترګي به ئې پټي کړې، دا به ئې داسي لیده، لکه په ریشتیا چي هغه د ده و مخ ته ولاړه وي، او هغه نوره هم مهربانه، ښکلې او ځوانه سوې وه؛ او ده ته خپل ځان هم ترهغه وخت ښایسته معلومېدئ، چي په یالتا کي وو. هغې د شپې له خوا ده ته د کتابو د الماری، د بخارۍ او د کوټې د کونجونو تر چولو پټ پټ کتل، ده د هغې د نفس کښلو او کالو نرم کښهاری اوریدئ. ده به په کوڅو کي ښځي په سترګو بدرګه کولې، پسې ګرځېدئ به چي داسي څوک به پیدا نه کړي چي په رنګ هغې ته سوې وي...

نور بیا...

د ۱۰۹ مخ پاته:

... ستره بدبختي نه وي چي تفوقونه او واره داره فرصتونه په موانعو او ستونزو باندي بدل کړو؟ البته، دا مسلم امر دئ چي خدای موږ ته وروڼه یوازي زموږ د ګټي له پاره راکړي دي. ورور یو لوی نعمت دئ، او دوه وروڼه یو بل ته اوږه ورکولای سي او واره او فرصت ایجادولای سي. ورور تر دې ډېر ښه وي چي انسان اضافه دوه لاسونه، دوې پښې، دوې سترګي، او دغه راز دوه دوه نور غړي ولري، ځکه چي طبیعت همدې ته ورور وایي. مګر په عین زمان کي دوه اضافه لاسونه د ژورو اوبو تل ته سرې نه سي رسولای، دوې اضافه پښې د لاري اندازه نه سي راکمولای، دوې اضافه سترګي د یو شي شا و مخ په عین وخت کي نه سي لیدلای؛ مګر کله چي دوه وروڼه ښه یاران وي، هیڅ داسي دېوال نسته چي هغوی سره جلا کړي او د یو بل سره د کومک کولو څخه دي ئې راوګرځولای سي».

نور بیا...

(۵)

# د کابل پېغله

(په زړه پوري اسلامي تاریخي ناول)

لیکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسین صدیقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

### د شور بازار حضرت

ارشد له خورا معززي او نجیبي کورنۍ څخه وو. پلار ئې د ده په کوچنیوالي کې لا مړ سوی وو. د ده روزنه او پالنه د ده مور سر ته رسولې وه. ښه تعلیم او تحصیل ئې کړی و. دی ډېر سنگین، خدمتگار او لړ خبري کوونکی ځوان وو. یوه ورځ د ارگ په بازار کې روان وو چي نابېره غازي امان الله خان پر دې لاره تېرېدی. هغه ارشد ته وکتل او ډېر سنگین او جذاب ځوان ورته ښکاره سو. نو دی ئې وروغوښت او د ده د کورني حالت پوښتنه ئې څني وکړه. ارشد په ډېر ادب او خوږه لهجه د هغه ټولو پوښتنو ته ځواب ورکاوه. د پاچا خوښ سو او څکه ئې نو په پوځ کې استخدام کړ او د یو ټولۍ مشر ئې کړ.

ارشد نوی ځوان او له جذباتو ډک وو. ښه هیواد پال او ملت پال انسان وو. د هیواد خادم، سرښندونکی او د پاچا یو تکړه وفادار وو.

ده له مسعود څخه رخصت واخیست او خپل کور ته ولاړ. ضعیفه مور ئې د ده په راتگ خبره سوې وه او څکه نو تر دې مهاله لا ویښه وه او په بې صبرۍ سره ئې د ده انتظار کاوه. ارشد په رارسېدو سره د خپلي کمزوري مور رپانده لاسونه ونیول او مچ ئې کړل. څنگه چي ډېر ناوخته وو نو مور او زوی دواړه خپل خپل بستر ته ولاړل او پرېوتل.

ضعیف العمر انسان که ښځه وي یا نر، په زوړواله کي د کمزورۍ او مزمن درد او نورو ناروغیو له امله خورا لږ خوب لري چي د ارشد مور هم لږ خوب درلود نو څکه ویښه پرته وه.

ارشد چي کومي صحنې لیدلي او خبري اورېدلي وې، تر همدې مهاله ئې لا د ده پر زړه او دماغ ډېر اثر لرلی وو. نو څکه ناآرامه وو او لټ پر لټ اوښتی. مور چي ئې د ده دا حالت او کیفیت ولید نو پوښتنه ئې وکړه چي ارشد زویه، ولي خوب نه درځي؟

ارشد ورته وویل چي زه همدا نن کابل ته راغلی یم او دلته مي داسي خبري واورېدې چي له امله ئې پرېشانه او ناآرامه یم، داسي نه چي په افغانستان کي د وینو ویالې و بهېږي.

د ارشد مور عایشه نومېده. هغې ورته وویل چي ما هم منفي خبري اورېدلي دي او داسي رامعلومېږي چي ځیني خلک بلوا او شورښ ته ځانونه تیاروي.

ارشد: تا بالکل صحیح اورېدلي دي. ستا به په یاد وي چي ما ته دي لارښوونه کړې

وه چي د شوربازار حضرت ته بيعت وکړم.
عايشه: هو په ياد مي دي، تقريباً شپږ مياشتي مخکي مي درته ويلي ول. هر افغان ضرور د کوم پير يا ملا متابعت کوي. ما د شوربازار د حضرت شهرت اورېدلی وو نو څکه مي همدا خبره درته کړې وه. خو پسله دونه ډېر وخته دي ولی اوس هماغه خبره په ياد سوه؟
ارشد: زه نن د شوربازار د حضرت محفل ته ورغلی وم.
عايشه: ښه، نو څه دي واورېدل؟ هغه خو ډېر لوی شخص او خورا ديندار انسان دئ.
ارشد تندی تريو کړ او د خښم په حال کي ئې وويل چي يا، داسي نه ده بلکي هغه يو لوی شيطان دئ.
عايشه يو دم راولاړه سوه او په ډېره حيرانۍ سره ئې ارشد ته وکتل او ورته وېې ويل: زويه، ته د يو داسي شخص په مقابل کي بې ادبي کوې چي پاکي او پرهېزگاري ئې ټول افغانستان ستايي.
ارشد: هغه رياکار، خطاکار او ټگمار دئ. که زه پر دې نه ببرېدلای چي ملت به مي قصاص نه کړی نو همدا نن به مي وژلی وای.
عايشه: آخر تا څه ليدلي دي چي داسي ورته خښمېدلی يې؟
ارشد هم ټوله هغه قصه ورته وکړه چي په خپلو سترگو ئې د شوربازار د حضرت په مانۍ کي ليدلي ول. د تېري زمانې ضعيفي او معمري عايشې چي دا خبري واورېدې ډېره حيرانه سوه او داسي ئې وويل: زويه، زه څه خبره وم چي هغه داسي انسان دئ. ما چي د ده په باره کي څه اوريدلي ول هغه مي درته ويلي ول. نن هم د کابل په هر کور کي د ده د تقدس، دينداری او پرهېزگارۍ خبري کېږي. هره پنجشنبه په خپل کور کي نصيحت او ديني خبري کوي. خو په دې محفلو کي يوازي ښځي برخه اخيستلای سي. د غټو او مشهورو کورنيو ښځي آن د شاهي کورنۍ ښځمنې هم ورځي. خو اعليحضرت غازی امان الله خان د خپل کور ښځي ورڅخه منع کړي دي.
ارشد: لاکن د ده کور د بغاوت اډه ده، زما په خيال دی له همدې امله د اعليحضرت پر خلاف درېدلی دئ چي اعليحضرت د پيرپرستۍ پر خلاف مبارزه راپيل کړې ده.
عايشه: بالکل همدا خبره ده زويه! اوس خو ډېر ناوخته دئ، لطفاً بيده سه، سبا سهار به د خيره په دې باره کي فکر او غور وکړې.
ارشد هم نور څه و نه ويل، څکه شپه نيمايي ته رسېدلې وه او هره خوا خاموشي خپره وه. د خدای مخلوق ټوله بيده وه، لږ گړی وروسته ارشد هم بيده سو. کله چي راويښ سو نو لمر راختلی وو. ژر راولاړ سو، ناری ئې وکړ او د فرقې پر خوا روان سو.
کله چي دارگ د بازار سره تېرېدی نو يو ډېر ښکلی او نوی ماډل موټر ئې وليدی چي مخامخ راروان وو. هغه چي کله ده ته نږدې راغی نو ودرېد او يو سړي سر را بهر کړ او ږغ ئې وکړ چي ارشده، ته يې؟ رارسېدلی يې؟
ارشد چي ورته وکتل هغه د شوربازار حضرت وو. دغه فرتوت پير ته په کتو ئې زړه له احساساتو وپړسېد خو ځان ئې کنټرول کړ او په ډېر احترام ئې هغه ته سلام واچوی او داسي ئې ورته وويل: هو، زه ستاسو د هدايت سره سم فوراً بيرته راستون سوم.
د شوربازار حضرت: ډېر دي ښه وکړل. ته ډېر زړه ور او تکړه ځوان يې. زما په زړه کي دي ځای نيولی دئ او ډېر راباندی گران سوی يې. راسه زما سره په موټر کي کښېنه.
ارشد: زه چي ستاسو جناب دغه ناپايه مهرباني وينم نو هر څومره چي په خپل

قسمت نازیږم بیا هم لږ دئ، خو تاسو جناب ته باید عرض وکړم چې زه باید فرقې ته ورسم او خپل کارونه ژر خلاص کړم.
حضرت: زه به ستا لوی افسر ته خط ولیکم چې ارشد نن زما سره دئ او خپل کارونه به بله ورځ وکړي. راځه د یو داسې چا سره به وګورې چې ستا ډېر صفت کوي.
ارشد هم په موټر کې ورسره کښېناست او موټر حرکت وکړ. اول هغوی فرقې ته ولاړل. څنګه چې هر چا دا موټر پېژندی چې د شوربازار د حضرت صاحب دئ نو عسکر، افسر، قوماندان او هر چا د خپلو بارکونو، کورونو او میدانونو څخه راځغستل او د موټر پر شا وخوا راګرځېدل او د تقدس له پاره ئې نارې وهلې چې ژوندی دې وي حضرت صاحب.
حضرت صاحب هم له موټر څخه راکښته سو. پر شاوخوا ئې د مریدانو خورا ګڼه ګوڼه جوړه سوه. د پوځیانو او پولیسو څه نا څه ٪۹۵ پرسونل د ده مریدان ول. هغوی آن د ده د عادي او کوچني امر مراعاتول نه یوازې دا چې خپل فرض باله بلکې د خلاصون ذریعه ئې بلله. نو له موټر څخه د ده د راکښته کېدو پر مهال هر څوک د ده د موټر پر شاوخوا راټول سول او هر یوه کوښښ کاوه چې د ده چپنه مسح او مچ کړي. ځینو خو به د ده لاس ونیوی او پر خپلو سترګو به ئې وموښی.
په دې ګڼه ګوڼه کې د ارشد لوی افسر هم شامل وو. حضرت صاحب هغه ته وویل چې ارشد نن زما سره دئ او خپل کارونه نه سي خلاصولای. ګڼه ګوني چې د ارشد دا ښه طالع ولیده نو ټولو د حسرت په سترګه ورته وکتل چې نن به نو هغه ټوله ورځ د حضرت صاحب سره ملګری وي. حتی ځینو خو لا په ناوړه لهجه سره داسې هم وویل چې: «ښېشکه ارشد جنتي دئ، څکه سپېڅلي حضرت صاحب هغه ته خاصه توجه کړې ده. هغه نن د خدای دوست سوی دئ».
لږ ګړی وروسته د شوربازار حضرت بیرته په موټر کې سپور سو او ارشد ئې هم د ځان سره کښېناوه. ګڼه ګوڼه هم یو څه له موټره لیری سوه او موټر روان سو خو ټولو یو ځل بیا شعارونه ورکول.
موټر له دې ځایه تر روانېدو وروسته برابر د حضرت صاحب مانۍ ته ولاړ او هلته دواړه راکښته سول او قصر ته ننوتل. دا مهال د زیاتو معززو افغانانو د کورنیو ښځې راغلې وې. په هغوی کې زړې، ځوانانې او پېغلې نجونې شاملې وې. هغوی چې کله حضرت صاحب ولیدی نو مخته ورغلې او خبَري نه وې چې نن یو ځوان هم د ده سره ملګری دئ. هغوی راغلې او د حضرت صاحب پښو ته ورټیټې سوې، د ده د چپني په مسح کولو او مچولو بوختې سوې او بیا ئې سرونه کښته نیولي ول او همداسې ولاړې وې.
ارشد پخپله یو شرمندوکی انسان وو. ده چې کله د افغانستان دغه ښایستې ښځې ولیدې نو سر ئې له شرمه کښته واچاوه. حضرت صاحب چې ورته وکتل نو موسکا ئې وکړه او بیا ئې ارشد تر لاس ونیوی او خونې ته سره ننوتل. خونه په مشرقي سامان آلاتو ډکه او ښکلې وه. هغه ارشد د ځان سره نږدې کښېناوه او ارشد هم سر کښته ځړولی وو او کښېناست. وروسته حضرت داسې وویل: ارشده، ته ډېر شرمندوکی ځوان یې. تا چې دا ښځې او پېغلې ولیدې نو وشرمېدې. خو هغوی تا ته په تیز نظر او جرأت سره کتل. ښایي تا زما احترام کاوه. ګرانه ځوانه، سترګې خدای د لیدو له پاره درکړي دي. د خدای دغه بې ساري مخلوق ته ګوره. د افغانستان دغو بې مثاله سپین مخو ته ګوره. د حُسن دغو

ښایسته مخونو ته ګوره او د هغوی نازونه ووینه او د خدای د خلقت او صنعت ستاینه وکړه. افغانستان داسي ښایسته او سپین مخي شاپیریاني لري چي په لیدو ئې د سړي زړه غواړي چي پرستش ئې وکړي. ما ته د هري طبقې ښځي راځي یوازي دا قزلباش خلک خپلي ښځی نه راپرېږدي. هغوی اصلاً شیعه ګان دي چي نه خلفای راشدین مني او نه هم د څلورو مذهبونو پیروي کوي. بس خپل یو کوچنی علیحده مسجد ئې جوړ کړی دئ. هغوی د څلورو امامانو پر ځای دوولس امامان جوړ کړي دي. حضرت علی ته پر نورو دور خلیفه ګانو باندي فضیلت ورکوي. دوی د عبدالله بن سبا پیروان او مقلدین دي. خیر، هغوی چي هر څوک دي او په هره عقیده چي دي، په ما پوري اړه نه لري خو د هغوی نجوني ډېري ښایسته او د فرشتو غوندي نازکي او سپین مخي دي چي هیڅ ساری نه لري. که هغوی په تیاره کي ولاړي وي نو روڼا جوړوي. د هغوی هلکان هم ښایسته دي، مګر د حیرانۍ خبره دا ده چي هلکان ئې د بلوغ سن ته له رسېدو وروسته په رنګ یو څه تور سي، خدای ښه پوهېږي چي علت ئې څه دئ. زه دا خبري د دې له پاره درته کوم چي د خدای دا ښایسته مخلوق ته په کتلو سره د خدای یاد تازه کېږي او د عبادت شوق ئې ډېر ېږي.

ارشد په داسي حال کي چي سر ئې ځړولی وو دا چټیات او مزخرفات اورېدل. د شوربازار حضرت وروسته داسي وویل: ارشده، ښه مستریح او بېغمه کښېنه. زما په دې ځای کي هره پنجشنبه همداسي محفل جوړېږي چي یوازي د ښځو له پاره وي. په راتلونکې پنجشنبه نه، بله پنجشنبه به تا راوبولم او د حُسن او ناز منظرې به درباندي ووینم چي ورته حیران به سې. نن زه یو څه کارونه لرم او غواړم چي ته هم نن زما سره اوسې خو د ځینو مصلحتونو پر اساس داسي نه سي کېدای. حالات نازک او حساس دي. خدای خبر خلک کوم کوم تورونه لګوي. له دې نه علاوه د افغانستان اصلاح کول هم په ما اړه لري. امان الله خان ملحد سوی دئ او اسلام ته ئې شا اړولې ده. غیرتمن افغانان اوس هغه د خپل پاچا په حیث نه خوښوي. دا بېره ده چي کورنۍ جګړه پیل نه سي. زه د راتلونکو شخړو او بحرانونو پر مخ د دروازې بندولو په فکر کي یم. نو خدای دي بری را په برخه کړي.

وروسته حضرت صاحب چپ سو. خو ارشد له دننه ایشېدی. د څېرې رنګ ئې وار په وار سوربخن کېدی. په زړه کي ئې اورني جذبات را پارېدل خو پر دې ټولو ئې کنټرول حاصل کړ او په خاموشۍ سره ئې سر ځړولی او ناست وو.

وروسته حضرت صاحب بیا خپلو خبرو ته دوام ورکړ او ویې ویل: ارشده، اوس به تا د هغه کس سره معرفی کړم چي ستا ډېر توصیف کوي. زه ډاډه یم چي ته به د هغه ښه ملګری سې.

ارشد وویل چی هو، یقیناً به هغه د دوستۍ وړ وي.

حضرت: هو، هغه ډېر قابل، زړه ور او د هیواد او ملت خیر غوښتونکی دئ.

ارشد: نو لطفاً هغه راوغواړئ. زه به خبري ورسره وکړم.

د شوربازار حضرت هم خپل لاسونه وټکول او یوه مزدوره راغله. حضرت ورته وویل چي هغه نوی مېلمه دلته راوله.

مزدوره هم فوراً ووتله. ارشد د نوي مېلمه انتظار کاوه او حیران وو چي دا نو څوک دئ چي زما دومره صفت او ستاینه کوي او حضرت صاحب غواړي زما سره ئې معرفي

کړي. هر څونه فکر او غور چې ئې وکړ دا سړی نې ځای ته رانه وستی (یعنې و ئې نه پیژندی). دی لا په همدې فکرونو او سوچونو کې وو چې هلته د قدمونو ږغ واورېدل سو. ارشد هم ژر ځان سم کړ او مخامخ ئې دروازې ته کتل. څو شېبې وروسته یو ډنګر، جګ او کورکوري مخی (چیچک وهلی) سړی راغی. ارشد چې ورته وکتل په همدا اول نظر ئې وپېژندی چې بچهٔ سقاو دئ. ارشد د هغه په لیدو سخت ټکاني او حیران سو او د همدې تعجب په حال کې ئې بې له اختیاره تر خولې راووتل چې: «همدا، غل بچهٔ سقاو؟»

حضرت: هوکې، بچهٔ سقاو. دا غل نه دئ بلکې حبیب الله خان دئ. ډېر نیک، زړه ور او د اولس او هیواد پالونکی شخص دئ.

بچهٔ سقاو هم راغی او د ارشد څنګ ته کښېناست. ارشد تندی تریو کړ خو د شوربازار د حضرت په خاطر ئې هیڅ هم و نه ویل. بچهٔ سقاو دا مهال ارشد ته مخ واړاوه او داسې ئې ورته وویل: زړه ور ځوانه! ته ډېر غیرتي او شریف انسان یې. په هغه ورځ تا حتماً زه نیولای سوم لاکن آفرین، د جلالت مآب د حکم په رارسېدو سره دې حمله پای ته ورسوله او فوراً بیرته پر شا ولاړې. بس زما په زړه کې دې ځای، وموند او ډېر راباندې ګران سوې. نو راسه چې اوس زه او ته ښه ټینګ دوستان سو.

ارشد تندی ګونجې کړ او زړه ئې له ګرومه ډک سو. هغه ته دا د ځان له پاره بې عزتي ښکارېده چې د یو غله سره حتی خبري کوي، دوستي خو لا لیرې خبره وه. د ده څېره وار په وار له قهره سره کېدله. د شوربازار حضرت د ده نا آرامه حالت او خښمېدلې څېرې ته په ډېر غور کتل. خو ارشد د دې هر څه سره سره بیا هم د صبر او حوصلې څخه کار

واخیستی څو چې په نرمه او کراره لهجه ئې داسې ورته وویل: وبخښه، زه تا د یو غله په حیث پېژنم، هغه غل چې پر بې ګناه خلکو تېري کوي، قانون ماتوي، خلک وژني، ښځې او کوچنیان نیسي او تښتوي ئې. تر څو چې ته خپلې دا کړنې پرې نه ږدې او د جلالتمآب حضرت صاحب په مخکې ژمنه و نه کړې چې په آینده کې به لارې نه نیسې، تر هغه مهاله د دوستی لاس نه درکوم.

حضرت صاحب وویل: بالکل صحیح ده، زه دا ډاډ درکوم چې ده نور نو لاره نیول او غلاوې ترک کړې. اوس دی د افغانستان د سمون او پرمختګ په فکر کې دئ. ته هم د اولس او هیواد خیر غوښتونکی یې او دی هم دئ. نو ځکه تاسې دواړه باید صمیمي دوستان سی.

بچهٔ سقاو: ما د تقدس مآب حضرت صاحب په مخ کې اقرار کړی دئ چې په راتلونکې کې به لارې نه نیسم او غلاوې به نه کوم. د وطن او خلکو خواخوږی به یم. زما مهربان او معظم مشر (د شوربازار حضرت) چې هر امر راته وکړی هغه به پر سر او سترګو منم او عملي کوم. ارشده، دا څه عجیبه نه ده چې افغانان به ما او زما سره تا ته هم لوړ مقام عطا کړي.

ارشد پوهېدی چې لوړ مقام یعنې څه. دی د شېبې په دغه پټه غونډه کې برخمن سو چې په ترڅ کې ئې د شوربازار حضرت بچهٔ سقاو ته د پاچا کېدو وړاندیز وکړ. اوس نو د ده په زړه کې داسې نا آرامي او هیجان را پیدا سوی وو چې په مشکل سره ئې ځان کنټرولولای سوای. خو په دې هم ښه پوهېدی چې په دې حساس وخت کې لږ خوځښت او لمسون نه یوازې د ده له پاره له خطره ډک دئ بلکې امنیت او سوله هم له

منخه وړي. نو څکه ئې پر خپلو حواسو او جذباتو کنټرول راوست او داسي ئې وويل: تاسي لطفاً ما ته د يو څه فکر او غور کولو مهلت راکړئ. د شوربازار حضرت ورته وويل: هيڅ تلوار نه دئ، بلکي درې څلور ورځي ښه څُرت پکښي وواهه.

بچۀ سقاو: سمه خبره ده، خو زه متيقين يم چي په راتلونکي مجلس کي به زه او ته د دوستۍ لاسونه سره ورکړو.

ارشد: هو، ښېشکه. ته صحيح وايې.

ارشد دا مهال د شوربازار له حضرت څخه د تګ اجازه وغوښته او هغه هم اجازه ورکړه. دی له دې ځايه راولاړ او روان سو او مخ د بازار پر خوا ولاړی. کله چي هغه چوک ته ورسېد چي د شاهي ماڼۍ عمارتونه معلومېدل نو بازار ته ور وګرځېد. خو څو ګامه چي مخته ولاړ نابېره مسعود ږغ پر وکړ او دی هم ودرېدی. مسعود پلی روان وو او کله چي راورسېد نو ده ته ئې سلام وکړ. ارشد هم سلام وعليک کړ. مسعود ورته وويل: آيا تا اورېدلي دي چي اعليحضرت امان الله خان له سفر څخه بېرته راروان دئ؟

ارشد په لږ موسکا سره مسعود ته وکتل او ويې ويل: ما خو هيڅ هم نه دي اورېدلي، تا ته دا خبره چا وکړه؟

مسعود: د خارجه وزارت له دفتره خبر سوم.

ارشد: ډېر ښه کار وسو. ورور، دا مهال د اعليحضرت شتون خورا ضروري دئ.

مسعود: تا خو به کومه نوې خبره نه وي اورېدلې؟

ارشد: کله چي دلته راغلی يم نوي نوي خبري اورم او په سترګو ئې وينم.

مسعود: لږ خو ما ته هم ووايه چي څه خبري دي.

ارشد هم د نن ورځي ټوله قصه ورته وکړه. مسعود وويل: د شوربازار حضرت د يوې مودې راهيسي د بچۀ سقاو سره د ليکونو او پيغامونو تماس نيولی دئ. ښايي بچۀ سقاو به ئې د ټولو کارونو او معاملو د بشپړولو له پاره راغوښتی وي. خدای دي افغانان د دې شرير او مفسد څخه وژغوري.

ارشد: د شوربازار حضرت په خلکو کي ډېر رسوخ او مقام لري. خو د خلکو دغه ناپوه دوست د هيواد سره دښمني کوي.

مسعود: داسي آوازې دي چي شينوارو هم ښورښ ته لاس اچولی دئ. هغوی د اعليحضرت څخه ډېر ناراضه سوي دي.

ارشد: دا هر څه د همدې شرير او مفسد کارونه او لمسوني دي.

مسعود: هو بالکل همداسي ده. الله خو دي د شوربازار حضرت تباه او برباد کړي.

ارشد: مسعوده! دېوال هم غوږونه لري، چپ سه.

مسعود: ولي چپ سم، د دغه بې وجدانه او ناولي انسان خبيث اعمال چي ګورم نو په رګونو کي مي وينه پر جوش راځي او زړه مي راته وايي چي د دغه مردود او خبيث سر غوڅ پرې کړم خو....

ارشد په خوله کي ور ولوېد او ويې ويل: برايي (بيګاه شپه) خو تا ما ته نصيحت کاوه، اوس پخپله د احساساتو او غوصې پر نيلي سپور سوې او کار ورانوې. دا عقلمندي نه ده.

مسعود: هو ښېشکه، په رښتيا هم زه په خان پوه نه سوم. بايد له ډېر احتياطه کار واخلو. درځه نن د غرمې ډوډۍ ستا سره وخورم.

ارشد: ډېر اعلی، ډېره منَنه.

دواړه ملګري د مجلس او خبرو په حال کي مخ د بازار پر خوا روان سول.

نور بيا ...

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

(د عبدالظاهر څرک په نوم)

**نهم لیک**

۲۸/ ۱۱/ ۲۰۰۰م

ګران الحاج عبدالظاهر جانه!

د روژې او وروسته دې د اختر مبارک سه!

سلامونه مې خپلې کورنۍ او دوستانو ته هم ورسوه او که در میسر سي او تر اوسه لا هم ژوندی وي سلطان محمد، عبدالولي (مدیر صاحب) او ملا محمدنعیم تره کي ته هم زما د سلامونو رسولو وسیله سه او یا ئې ته هم بالوسیله ور ورسوه.

خیر یوسې، زه چې را په زړه کوم ډېر وخت کېږي، تر درو میاشتو هم زیات وخت وسو چې خط مې نه دئ دراستولی. دا نو د سپین ږیرتیا او کهولت نتیجه بولې که هر څه، خو زه چې څه وخت پخوا ته مراجعه کوم پر دغه مهال به زما د لیکونو لمبر تر ۱۸۰ اوښتی وو او که بل هر عذر ئې وګڼې خو نتیجه ئې دا سوه چې زه ستا پوروړی سوم.

رشتیا هم دا ده چې زوړ له ځوان سره په منډه کي نه بریالی کېږي، نو ستا پور که څندنۍ هم سو خوړنۍ نه سو. په دغه لیک به غاړه وباسې. که څه هم دا لیک بې نوبته تر دغه اجبار لاندې ولیکل سو چې ډاکتر صاحب طارق جان رشاد روان وو، هغه مې په تش لاس نه سوای پرېښوولای او دغه موقع مې غنیمت وګڼله ومې غوښتله که امکان ولري چې خط په لاس در ورسوي او که مې هغه ته لاس نه ورسېدی پوسته خو له هغه پرته هم زموږ و مخ ته ده. خط چې تیار وي لېږل ئې اشکال نه لري. ښه نو پر ۲۵/ ۹/ ۲۰۰۰ دې تلیفون راکړی وو، چې زموږ یوه وړه ټوټه مځکه چې چا حتی تر غصب وړاندې په فاسده بیع خرڅه کړې وه، هغه سودا باطله او فسخه سوه او بائع او مشتري پرته له هغې چې څه ادعا ولري پر شا سول. ستاسي څخه ډېره مننه، کشکي هغه د اداري او حکومت ناحق مدعیان چې نه مځکه لري نه واک هم له دغو سوداګرانو څخه زده کړي چي فاسده سودا منزل ته نه رسېږي.

له فریدې څخه دې د خپلې لور د ورېښتانو له بابته پوښتنه کړې ده، خو د یوه پښتانه سپین ږیري په صفت چې په هر څه کي تر هر چا وړاندې نظر ورکوي اول به زه خپله تیوري د معاصر طبابت په باب درته ولیکم:

طبابت اصلاً د ناروغیو د پېژندلو علم دئ، نه د هغو د علاج او یو طبیب تر عادي سړي مرض ښه پېژندلای سي. خو درملای ئې نه سي، سرطان، ایډز، ملاریا، ژړی، سِل، ټیټانوس ... او ډېر نور ساري او وبایي امراض در په زړه کېږي.

په طبابت کي دوې برخي نسبي بریالیتوب لري، وقایوي طب او یو څه هم جراحي. خو دا چي هر څوک په خپل قسمت مري دا د آخري ورخي خبره ده، که ئې سړی په لومړي ورځ هم ومني نو به د ډاکټر له منډو رامنډو څخه فارغ وي، ځکه د علاج له پاره هغه شرایط چي د ډاکټر په کار دي تر اوسه د انسان په دسترس کي نسته، امابعد.

زما کشره لور هم طبیبه ده او طبابت ئې هم تازه دئ. دا هم لکه فریده له هندوستانه فارغه سوېده، فقط دوه کاله وړاندي، څو میاشتي په نوي ډیلي کي په یوه سرکاري شفاخانه کي طبیبه وه. بیا دلته راغلو، اول مي دا مشکل هغې ته ووایه، هغې خپل سوالونه وړاندي کړه او عام نظریات ئې ورکړل. کله چي فریده راغله دواړي مي یو ځای کړې او د دوی د طبي کنفرانس نتیجه ده رااوته:

دلته دوې خبري دي:

۱/ د ورېښتانو رژېدل، هغه دي چي ورېښته ولاړ وي خو پر یوه برخه یا مات سي یا په اوړدو تقسیم سي، بیا توی سي.

۲/د ورېښتانو ختل او توئېدل.

دا هر یو خپل علل او عوامل لري، اول باید د ناروغۍ شکل معلوم سي ما د توئېدلو عوامل دغه وګڼل:

۱. ممکن دا شکایت موسمي وي، که داسي وي د موسم تر تېرېدلو وروسته په خپله شکایت کمېږي یا ورکېږي.
۲. ممکن د خوړو او د غسل یا چښلو د اوبو ډول ئې عامل وي خو د خوړو و ډول ته متوجه کېدل به دا خبره روښانه کړای سي که هغه مؤثر وي باید بدلون پکښې راوستل سي.
۳. ممکن د شامپو یا صابون په مقابل کي حساسیت وي، که هغه بدل سي شکایت به ګوندي ورک سي.
۴. د ویټامینو کمبود خصوصاً .B complex او c چي د دغو ویټامینو استعمال هم د موجود شکایت د لیري کولو او هم په عام صورت ګټه کوي.
۵. ممکن منشاء ئې مکروبي Fungus وي (فنګس چي په پښتو ئې باید چیناسکي وګڼو) ویروس دئ چي لیدل کېږي نه خو تکاثر کوي او اغېزه لري. فریده وایي چي دلته د یو ډول فنګس په مقابل کي شامپو په بازار کي خرڅېږي او زه به پوښتنه د طارق په لاس ورواستوم. خدای دي وکړي چي د دې او طارق دواړو هېره نه سي. دلته په عام صورت طبیبان غوړي بد ستایي که چیري ئې غوړي په شیدو ور بدل کړې ممکن ګټه ورته وکړي که دغه مشکل حل نه کړې د نورو مخ به راوګرزوي.
٦. په نفسیاتي برخه کي بې ځایه تشویش او سودا هم دغه اغېزه درلودای سي او د هغه په رفع کي کورنۍ مرسته کولای سي.
۷. که په طبیعي صورت هره ورځ د ۷۰ تارو په حدودو کي ورېښته توی سي حتی تر (۱۰۰) پوري هم د تشویش وړ نه ده، بیرته راځي، که چیري سر

داغ پاته سي علاج ئې باید اساسي وسي.
خدای تعالی دي د لور تشویش او د هغه په نتیجه کي ستاسي تشویش لیري کړي تر دغه وروسته نو زما او ستا مجلس دئ.
"دا چي ما در ته ویلي وه چي پیسې دلته بېکاره پاته دي ولي ئې نه درغواړې، زه په وروسته کي پر دغه خبره پښېمانه سوم. ځکه ما ته به وایې چي دغه لاري نو ته ولي رابښېې".
دا ستا د خط یوه برخه وه.
زه اوس ستا د پورته لیکني په باب له هر ډول محافظه کارۍ پرته خپل نظر در ته لیکم او دا مي یقین دئ چي ته به په زړه کي هم د هغه له پاره غلط تعبیر جوړ نه کړای سې او که چیري ته دا کار وکړې هم زه به پروا ځکه نه کوم چي زما حساب په خپل زړه کي راته پاک دئ او ځان به صرف هغه وخت پړ او ملامت ګڼم چي د دوستۍ د ادعا سره سره مي ځیني خبري چي فکر ته راغلي وې هغه مي په صراحت او بې پردې دوست ته نه وي کړي بې ځایه ملاحظه کاري او احتیاط مي کړی وي او پر خپل دوست مي د خلوص پر ځای شک او ګومان کړی دئ. خبره مي له ځانه سره ساتلې وي چي مبادا د مخاطب و زړه ته څه نه وروګرزي. په دې حساب نو د عاجلي خپلي ګټې له پاره خپل دوست د آجل تاوان سره مخامخ کړم، چي په دې توګه به مي د دوستۍ حق نه وای ادا کړی او زما به نو لوی دلیل دغه وي چي مبادا هغه و نه وایي چي دا ئې ولي راته وویل؟ او که هغه د دوستۍ پابند وي دا پوښتنه به هم په صراحت وکړي او توضیح به وغواړي. ملاحظه کاري به د دوستۍ له ډګره وتلې پاته وي.
دا خو سو د خبري یو طرف. اما بله خبره د مشورې خبره ده. مشوره په خپله نه حکم دئ نه عسکري قومانده چي باید څوک ئې په پټو سترګو ومني او نعل بالنعل ئې تطبیق کړي. بلکي د ډېرو انتخابونو له جملې څخه د سړي په وړاندي یو انتخاب ږدي منل او نه منل ئې د سړي خپل اختیار دئ که چیري ئې یوه مشوره و نه منل سي مشاور نباید روسی مشاور سي چي خوا بده کړي او عکس العمل وښیي ځکه د هغه غاړي خلاصي دي او خپل مصلحتي نظر ئې وړاندي کړی دئ.
مشوره مشر او کشر هم نه لري. د "شاور فی الامر" څخه پوره ښکاري، انسان چي تر څو ژوندی دئ مشورت او مصلحت ته اړتیا لري، هیڅوک له ځانه پوره نه دئ، یوازي به مرکب جاهل خان بشپړ ګڼي. موږ او تاسي دي خدای تعالی له دغه ډول عُجب او خودبینۍ څخه خوندي لري.
په نتیجه کي:
زه اوس ستا له هغي مشورې څخه د زړه له کومي مننه کوم، پر کومه چي ته اوس پښېمانه یې او ستا له پښېمانۍ څخه ګیله لرم او دا اوږد بیان نو ستا خوښه ده چي ګیله ئې ګڼې که مشوره یا نصیحت.
ما ستا خبره ومنله یا ئې توارد وبوله، د نعیم جان څخه مي پیسې وغوښتې څو ناحقه ئې په خاورو نه ولړي، او د هغه دلایل مي هم په خپل خط کي مفصل ورته کښلي وه. د دې تذکر سره چي لیک ستا تر نظر هم تېر کړي. بالاخره تقدیر زموږ پر تدبیر زورور سو او د خط په لیکلو کي تاخیر راغی او ته حاضر وې جریان ستا و مخ ته تېر سو. قسمت خپلي چاري وکړې خو د خط د تکرار له پاره ما ممانعت وکړ. معلومه نه سوه چي موثر وو که نه.
بله خبره دا ده چي:

محمدنبي خان استاد په مکتب کي زما د لومړي صنف همصفني دئ. نه پوهېږم د ده به په زړه کي وي که نه، اوس له هغې راهسي تر ٦٨ کاله زيات وخت تېر دئ او لله الحمد په هغه دوستي کي هيڅ خلل نه دئ راغلی. کله کله چي به هغه مشوره غوښته حتی که به دا مشوره د هغه د دوستانو او خپلوانو په باب کي هم وه. ما به خپل مصلحتي نظر له هر ډول ملاحظه کارۍ پرته حتی د ده د خوا او خاطر د نه مراعت په شکل څرنګه چي د مشورې حق دئ په کامل صراحت ورته ويله. اوس چي دی وايي "ما څکه د مځکو د خرڅولو مشوره نه ده ورکړې نه چي د ده په زړه کي وروګرزي چي زه ئې د حاجي احمدالله يا د هغه د ورونو له پاره د لاسه کوم" عجب! څوک چي کله شی خرڅوي يا له مجبورۍ يا هم له مستۍ. نه د خريدار غابښ ګوري نه ئې د اصل او نسب سره سروکار لري. فقط د خريدار له جېب سره ئې سروکار وي. د قيمت د لږ يا ډېر سره اړه لري نه د هغه د سياسي او مذهبي عقيدې سره. په تبرع او بخشش کي د مقابل طرف شخصيت نقش لري خو په بيع کي قيمت رول لري دا د بازار د ژوندانه لومړنۍ الفبې ده. که څه هم په سوداګري کي ډېر ځله دا اوربدل کېږي چي صرف تا ته په دغه قيمت درکوم، خو واقعيت دغه امتياز نه سي منلای، ځکه نو د رانيولو او خرڅولو پر وخت بايد انسان د بازار شرايطو او د عرضې او تقاضا اصولو ته غاړه کښېږدي.

که ئې ګران رانيوی يا ئې ارزانه خرڅ کړ دا ئې خپله ساده ګي ده، که چيري زه وغواړم چي مځکه خرڅه کړم. ستا او يا ستا د يوه دوست هم خوښه وي، نو ولي ئې بايد تاسي نه رانيسی؟ د دې خبري دليل څه دئ؟ زما په فکر که ئې ته رانيسې ستا به مړانه وي چي د دوستۍ پر بنا تر بل چا ئې نيم فيصد ګرانه رانيسي او زما به دا همت وي چي تر بل خريدار ئې تا ته دوه فيصده ارزانه درکړم، خو که ئې ته خپل د يوه دوست له پاره وغواړې هغه وخت به تر قسطاس مستقيم ډېر غوره وي.

سودا په رضا ده، دا خبره اوس د خپل حکمت سره منلې سوې ده، که چيري تر سودا وروسته هر طرف ګيله کوي دا کار ئې ناسم او غلط دئ او که څوک د دريم د شرم او خبرو څخه وغواړي چي ځان وساتي د دې خبري له پاره نه حد سته او نه اندازه او نه وقايه لري نه حمايه او بېځايه سودا او تقوی ده. دا دي هم پته نه وي چي که زه د خرڅولو له پاره زړه ښه کړم. په موجوده وضع کي د سياسي او امنيتي لحاظه هم، د دې ځای د معلق سرنوشت په نسبت هم، زه په خپله نه سم راتلای، او که مي دا کار کاوه هم به ئې ستا پر لاس او ستا په وسيله کوم او ستا ګرېوانه ته به لاس دراچوم، لکه هر وخت چي مي دا کار کړی دئ. نو که په دغه صورت کي ته په خپله يا ستا بل دوست خريدار سي زما له پاره به تر دغه ښه څه وي؟

ما د مځکو په خرڅولو کي هيڅ فکر نه وو کړی، تا دي خدای تعالی برخوردار کړي چي زه دي متوجه کړم. ما اوس دا خبره د اولادو مشورې ته واچول هغه هم الحمدلله ضرورت نه لري، په هر صورت ظاهراً هغوی د آينده مالکان دي. زه بايد د هغوی په خوښه کار وکړم.

دا اوږده خط د لوستلو زحمت چي درکوم وبه مي بخښې خدای تعالی دي پراخه حوصله په برخه کړه.

زه به دعا درته کوم

عبدالرحيم هاتف

هارون خپل شعشعي/ لندن

# وختونه او یادونه

(اوومه برخه)

سبا سهار د ورور او خپلي کورنۍ د احوال اخیستلو په نیامت د کندهار د هوایي میدان د موټرو و اډې ته ور و وتلم. له نېکه مرغه زما په ور رسېدو سره سپینه اته کسیزه ټویوټا تیاره د رهي کېدو په حال کښي وه. د دوراهي تر حدودو وروسته د کندهار د هوایي میدان د لاري و دواړو غاړو ته د شنو بوټو او مستو زرګو زړَه وړونکي منظرې، نه یوازي زما، بلکي ټولو سپرلییو پام اړاوه. سربېره پر دې د پسرلي وږمو په فضا کښي د تازه بوټو او دښتي ګلانو داسي خوشبوياني او عطرونه خپرول، چي په تنفس کولو سره یې د انسان روح خوشالي او تازګي موندله. دې رنګیني فضا او طبیعي ښکلا تر هر بل چا پر ما غوندي مساپرو لوی اثر ښانده، چي د کراچي لغوړني، سرېښناکي او ګرمي هوا، خړپړ اسمان او خروړو غوماشو یې په لږ وخت کښي زړَه را کوږتلئ ؤ.

په پخوا زمانو کښي مي د دامان د هوسیو هم خورا ډېر صفتونه او تعریفونه اروېدلي وو؛ ځکه مي نو په لار کښي په ډېر غَوَّر سترګي دې خوا، آخوا لغړولې، چي که ګوندي د زرګو او تاروګانو تر څنګ د یو و نیم هوسیو په لیدو هم بریالی سم؛ خو داسي ښکارېدل چي د جنګ وحشتناکو اورو او لوخړو زمونږ د داماني هوسییو جونګړې هم وراني کړي وې.

شپږ میاشتي مخکي، هغه وخت چي له همدې هوایي ډګر څخه لومړی د کندهار او بیا پاکستان پر لور روان وم، په لار کښي د عصمت د ډلي د یوه ګرېوان شکېدلي، ببرسري او نشه ځوان له ترخې خاطرې سره مخامخ سوم. نشه عصمتي په داسي حال کښي، چي پر اوږه ایښئ کلاشینکوف یې د میل تر چوښکي نیولئ ؤ، د خپلي پوستې و مخ ته زمونږ د سپرلي موټر و دراوه؛ او په بې ځایه پوښتنو او اپلتو یې ښایسته ډېر وخت وکړولو. عجبه ده دا پلا مي نه د مجاهدینو د توغندییو ببره په زړَه کښي وه؛ او نه هم د ببرسرو نشه یي عصمتیانو د تلاښییو، پلټنو او ځورونو.

که څه هم د مجاهدینو بېلابېلو ډلو به کله ناکله د هوایي ډګر او ښار تر منځ لار کښي پر حکومتي کاروانو ناڅاپي بریدونه کول، خو له نېکه مرغه په دغه ورځ د لاري په اوږدو کښي له هره اړخه خیر و خیریت ؤ.

د هوایي میدان په نظام قراول کښي مي

سمدلاسه د ورور، محمداحسان، د لیدو غوښتنه وکړه، چې له څو کالو راهیسي یې دلې د مخابرې د کنډک د قومندان په توګه کار کاوه. په نظام قراول کښې مؤظف منصبدار تر ځینو تلیفوني پوښتنو وروسته راته و ویل: « همرای معاون سیاسی شان ګپ زدم، ګفتن[ ګفتند]: قومندان صاب دیروز عاجل کابل رفتن [رفتند]. »

زما او نوکریوال تر منځ لا خبري نه وې خلاصي، چې یو بل منصبدار په ډېرې وارخطایۍ د کندهار د هوایي میدان د یوې الوتکي د لوېدو خبر و وایه. د دې خبر په اروېدو سره مې د زړه شریک سو. بیر ته د همغه نوکریوال وخوا ته ور غلم؛ او ور ته و مې ویل:

– پیشتر همکار تان در بارهٔ سقوط طیاره ګپ زد. یې[ این ] خبر مه را هم بسیار به تشویش انداخت. نمیشه خودم به دفترش بروم؛ و از همکارانش پرسان کنم.

نوکریوال زما په اندېښنې او خواشینۍ ښه و پوهېدئ؛ ځکه یې نو و ویل:

– چرا نی. مګر دفتر برادر تان کمی دور است. شما ایجه باشین. میشه او موتر قراردادی میدان تا یک جای کمکت کنه.

– بسیار خوب.

نوکریوال و نظام قراول ته د هوایي ډګر د خوراکي موادو د قراردادیانو د شین رنګه موټر په را رسېدلو سره، د درېدو اشاره وکړه.

– استاذ! یی بیادر ما را هم تا کندک مخابره برسان. بلد نیست شاید راه را ګم کنه.

– بیا وطندار بالا شو. د خوراکي موادو موټروان په نسبتاً لوړ اواز را رغ کړه.

بې تلاښۍ ملاښۍ سیده د موټر و سیټ ته ور وختلم. پینځه – شپږ دقیقې وروسته موټروان د ګوتي په اشاره د مخابرې کنډک را و ښیه؛ او خپله پر بله لار ولاړئ. زه هم له یو ژور عاطفي احساس سره د مخابرې د کنډک پر لور ور رهي سوم. له ځانه سره مې ویل:

– خدایه! په پردي مَلک کښې له خپلي سایې ځخه بېرېږو؛ د کور، کار او بازار په لارو کښې تورمخي پولیس را ته ولاړ یې؛ په دې او هغه نامه مو په جېبو کښې تلاښۍ او پلټني کېږي؛ سپکي سپوري را ته ویل کېږي؛ خو دلته په خپله پلرنۍ خاوره کښې او دونه حساس عسکري میدان ته د ننوتلو پر مهال هم حتا چا تلاښي نه کړم. په دغو سوچو او خیالوکښې ډوب وم، چې د مخابرې دکنډک صاحبمنصبان او عسکران را ښکاره سول.

تر سلام اچولو وروسته مي سمدستي ځان ور وپېژندئ. د احسان لالا نیژدې اندېوالان ټول په دې خبر وو، چې له کمه ځایه ورغلئ یم. سره له دې هم، هر چا مې په ډېره مینه او صمیمیت هر کلي وکئ. البته، دا مهال تقریباً ټول باشعوره افغانان په دې پوهېدل، چې غوا توره او پی سپیني دي؛ ځکه یې نو ما بېوزلي مهاجر ته هم د دوښمن، تښېدلي یا غولېدلي په سترګه نه کتل.

– قومندان صاب احسان خان خو پرون سهار کابل ته لاړ. د خواجه رواش ملګرو مخابره کړې وه، چې کورنۍ یې یوځل عاجل کابل ته غوښتئ دئ. د مخابرې د کنډک سیاسي مرستیال په خپله خوږه کونړۍ لهجه

وویل.

– اوس مي په نظام قراول کښي له یوه نوکریوال څخه واروېدله، چي ستاسي د میدان کمه الوتکه را لوېدلې ده؟

– هو الوتکه دوه ساعته وړاندي د روزګان په شاوخوا کښي ولوېده. خوشبختانه پیلوټ یې ژوندی دئ. اوس دوه نور هیلیکوپترونه ورغله، چي پیلوټ ته یې نجات ورکي.

– موږ خو په کور کښي له احسان لالا څخه هیڅ ډول شکایت نه لاره، نه پوهېږم چي ستاسي او نورو همکارانو سره په ګوزاره کښي څنګه دئ؟

– په کندک کښي داسي څوک نشته، چي د احسان خان بد و وایي. مونګ ټول هغه ته د ورور په ستر ګه ګورو. پخوانو قومندانانو به پر مادونانو سل رنګه امرونه او منتونه کول، خو دی بېچاره له هیچا سره داسي وضعیت نه کیي، چي د چا زړه پرې ازار شي. دومره د کار شوقي دئ، چي یوه شپېه هم ارام نه کښي. تمامه ورځ د مخابرو او نورو وسایلو په جوړولو لګیا یې. زمونګ سره په دې میدان کښي داسي مخابرې شته، چي بې روسي انجینرانو یې په درست افغانستان کښي څوک په سوړ نه پوهیده، خو احسان خان په خپله پوهه او تجربه داسي ډېري ورانی دستګاوي جوړي کړي دي. سیاسي معاون صاب زیاته کړه.

معاون صاب ډېر پوه او صمیمي سړی ؤ. د غرمنی ډوډی پر مهال یې زه هم د هوایي میدان د صاحبمنصبانو و طعامخانې ته بوتلم: او هورې یې په داسي حال کښي چي د مخابرې د کنډک نور منصبداران هم ناست وو، د ارامی په کلونو کښي و پېښور، لاهور او کراچی ته د خپلي اوږدې دورې په اړه په زړه پوري کیسې وکړې.

تر ډوډی خوړولو وروسته مي د مخابرې د کنډک له معاون، شیراحمد خان، سره ولیدل، چي پخوانی پېژندګلوي مي ور سره لرله. البته، په تېرو لسو- یوولسو کالو کښي مو بیا نه وه سره لیدلي. شیراحمد خان او احسان لالا دواړه یو وخت د کابل په هوایي پوهنتون کښي همصنفیان وو. شیراحمد خان د احسان لالا پر خلاف شوخ طبع او ټوکي سړی ؤ. د پښتنو په باندار کې زیاتره په پښتو خبري کولې، چي کله کله بې د ځینو ګرامري تېروتنو په کولو سره، په خپله هم پر ځان خندل. د شیراحمد خان خوږې هراتی لهجې، شوخ طبعی او صمیمت پر هر چا پر زړه نېک او دوستانه اثر ښانده. له هوایي پوهنتون څخه یې د فارغېدو په لومړیو میاشتو کښي، یوه ورځ را ته وویل:

– هارون جانه! پوهېږې زه ښار ته د را وتلو پر مهال و انضباطانو ته ډېر ازار ورکوم. کله د خیبر هوټل و مخ ته تېرېږم، کله د ښاروالی و مخ ته او کله هم په نورو چوکو او سړکو کښي دې خواآخو ګرزم، چي انضباطان سلامي را ته وکي.

ما په خندا خندا ور غبر ګه کړه:

– شیراحمد خانه! دا کار په دې کیې، چي بېچاره انضباطان په ناحقه ازار کې، که ریشتیا هم د هغو په سلام او تعظیم خوشاله کیږې؟

– ولا دواړه. تا ته خو مالومه ده، چي دا

فورم و نښان موږ په مفته نه دئ وهلئ. کلونه کلونه مو درسونه ویلي دي. بله خبره دا ده، چې انضباطان ټوله ورځ دغسي ولاړ يي. غیسې (قیصې) او مزاغونه (مزاقونه) کيي.

– ښه نو مخسد دي دا دئ، چې غواړې د خپل تحصیل او زحمت بدله له بېچاره انضباطانو څخه واخلې؟

– نه ولا ما ته ډېر خوند را کيي، چې د انضباطانو د پښو په لوړ اواز ټول لارويان زموږ خوا ته و ګوري.

شیراحمد خان وروسته د مخابرې له لاري په خواجه رواش کښې له خپلو همکارانو سره خبرې وکړې. متأسفانه دا مهال احسان لالا په کور کښې ؤ؛ ځکه نو زما په راتګ خبر نه سو. شېراحمد خان د رسمي کار تر ختمېدو وروسته په ډېره مینه د هوایي منصبدارانو په بلاکو کښې و خپل کور ته بوتلم؛ اود شپې تر ډېره يې د پخوانو وختو خاطرې بیان کړې. د خبرو او مرکو په جریان کې و ویل:

– هارون خانه! تاسي غوندي دانشمند او وطندوست کسان، چې وطن پر پردي ډېرد افسوس ځای دئ؛ مګر احسان خان او زه دلته خوشاله یو.

– شېراحمد خانه! تاسي ته مالومه ده، چې هیڅوک ناحقه خپل کور او وطن نه پرېږدي. که مجبور نه وای هیڅکله به مي د پاکستان نوم هم پر خوله نه وای اخیستئ. سره له دې هم، پاکستان ته مهاجرت د افغانیت او وطن پرېښوولو مانا نه لري. خدای تعالی دي زموږ شپې او روځي په پاکستان کښې نه اوړدیي. که اوړدې هم سي دا

دردېدلي زړونه به تل **تر تله** د ګران افغانستان په مینه کښې تپیږي.

له شېراحمد خان سره مي د افغانستان د واکمن دولت د سیاستو په اړه اوږدې انتقادې خبري وکړې، چې په زیاترو مواردو کښې د ده له خوا هم د سر په ښورولو سره منل کېدې.

سهار شېراحمد خان له ځانه سره و خپل دفتر ته بوتلم. دفتر ته له رسېدو سره سم يې د خپلو د پرمختللو مخابراتي دستګاوو له لاري په خواجه رواش کښې له احسان لالاسره د خبرو هڅه وکړه. همکارانو يې ور ته و ویل، چې احسان خان د کورنۍ له ځینو غړو سره یوګړی مخکي وکندهار ته در روان سو. د دې باور نه کېدونکي خبر په اروېدو سره دونه خوشاله سوم، چې په کالو کښې نه ځایېدم.

شېراحمد خان لا د خپلو مخابراتي دستګاوو د تخنیکي خصوصیاتو په باره کښې خبري کولې، چې ناڅاپه پیلوټ په مخابره کښې د کندهار هوایي ډګر و فضا ته د را رسېدو خبر اعلان کئ. موږ هم په بې صبرۍ سره د الوتکي د کښېنستلو خوا ته ور رهي سوو. په پینځو– شپږو دقیقو کښې الوتکه و درېدله. احسان لالا، زما مېرمن او دوې لوڼې، خسر بابا او ځینو نورو مساپر را کښته سول.

د کندهار د هوایي ډګر د الوتني پر لیکه یا رنوې (چې دوی به د روسانو په پیروي پَلَسَه بلله) ځای ځای لویو پنډو فلزي تختو د خلګو پام اړاوه. په دغو مخصوصو فلزي تختو د مجاهدینو له هغو راکیټي حملو څخه پیدا سوي ژور ډبونه پوښل سوي وو، چې د طیارو د کښته کېدو پر مهال بې د میدان پر لور توغول.

په دې خاطر نو د میدان منصبداران او عسکران هیڅکله بې دلیله د طیارو د کښته کېدو پر وخت د الوتنې له لیکې سره نه گرزېدل. د ولاړو منصبدارانو په زړه خدای خبر ؤ، خو زه د خپلو عزیزانو د لیدو په مینه کښې داسې بې خوده وم، چې د توغندییو او هاوانو بېره مې له زړه وتلې وه. البته، شپږ میاشتې مخکې له کابل څخه د راتگ پر مهال، ټول مساپر د الوتکې تر کښېنستو وروسته په بېره او وحشت و خوندي ځای ته د رسېدو په مخسد ځغاستو.

د ورور، مېرمنې، اولادو او خُسر بابا په لیدو سره مې بې اختیاره د خوښۍ اوښکې تر سترگو را و بهېدې. د خوښۍ دې اوښکو بېله شکه له هغو دردناکو او غمجنو اوښکو سره ډېر توپیر لاره، چې شپږ میاشتې مخکې مې د پاکستان د نامالومه سفر په نیت د مور، پلار، مېرمنې، لوڼو او نورو عزیزانو له حضور څخه د رخصتېدو پر وخت تر سترگو را توی سوی وې.

–که څه هم په کوټه کښې مې د څو ورځو پاته کېدو سرریښته (سرریښته) کړې وه؛ خو ستا په راتگ له لویه عذابه خلاص سوم. پلوشې د لارې ملگرې نه لاره؛ ځکه نو زه ور سره راغلم، چې تر کوټې یې در ور سوم؛ او بیرته کابل ته راسم. خُسر بابا په خندنۍ لهجه و ویل.

– زه خو ستاسې د ټلیگرام په تر لاسه کولو سره سمدلاسه را رهي سوم. تاسې په ټلیگرام کښې د کتابو د را لېږلو خبره کړې وه. فکر مې وکئ، چې په شیفرې ډول مو و خپل تیارې او راتگ ته اشاره کړې ده. په دې خاطر مو سیده و مخ ته راغلم، چې سرگردانه نه سئ.

– دا خو ډېر ښه کار و سو، چې ته راغلې، مگر مور په ټلیگرام کښې ستا د راتگ غوښتنه نه وه کړې. له دې کبله خو زه شخصاً له پلوشې سره راغلم، چې تر کوټې پورې یې در و رسوم. مور داسې گڼل، چې کندهار ته به ستا بیرته راتگ ممکن نه یې.

– یا یا په کندهار کښې خو له ډېره وخته، کابل یا نورو ولایتو غوندې، خلگ په زوره و عسکرۍ ته نه بیایې. له دې خاطره نو زما په بیرته راتگ کښې هیڅ مشکل نه ؤ.

– په دې مسأله نه وم خبر.

دا مهال د طیارې پر شاوخوا دونه تېزه هوا چلېدله، چې د ځینو منصبدارانو خولۍ له سره و لوېدې؛ او نیژدې ؤ چې د پلوشې پوړنی او زما ژمنی پټو هم کاغذباد غوندې په هوا والوزي. په دې وخت کښې شېراحمد خان له څو گامه فاصلې څخه په نسبتاً لوړ اواز را ږغ کړه:

– احسان خانه! راځئ چې کور ته ولاړ سو. دلته هوا ډېره یخه ده.

خُسر بابا د دې خبرې په اروېدلو سره و ویل:

– ما ته نو اجازه راکئ، چې بیرته په همدې طیاره کښې کابل ته ولاړ سم. په لار کښې احسان خان و ویل، چې دا طیاره څو ساعته وروسته بیرته کابل ته ځي.

– راځئ یو شپه – دوې دلې تېرې کئ، بیا به پر ارامه ولاړ سئ. دلته د طیارو کمی نسته. احسان لالا په خندا ور ته و ویل.

– کور مو ودان. دا دئ هارون جان مو هم ولیدئ. نور نو زما مسؤلیت ختم دئ. بهتره ده ژرترژره ځان کابل ته ورسوم.

– ښه نو چي نه پاتېږئ. راځئ د طیارې له پیلوټ سره خبري وکم، چي بیرته مو له ځانه سره بوزي. احسان لالا ور غبرگه کړه.

احسان لالا له پیلوټ او نوري عملې سره د خبرو اترو دپاره د الوتکي وخوا ته ور تېر سو. خُسر بابا زموږ ټولو سره خدای پاماني وکړه؛ او په دوو– درو دقیقو کښي بیرته همغه الوتکي ور وختئ، چي په لږ و ډېر یوه ساعت کښي بیرته کابل ته روانه وه.

– راځئ اوس نو په خیر ولاړ سو. احسان لالا په داسي حال کښي و ویل، چي د پلوشې یوه کوچنۍ بکس يې په راسته لاس کښي اخیستئ ؤ.

– د طیارې تر الوتلو پوري دلې انتظار و نه کو؟ مبادا خُسر بابا ته څه مشکل ور پېښ سي. ما ور غبرگه کړه.

– یا یا. نور که خدای کول هیڅ مشکل نسته. د طیارې عمله ټول شناخته خلگ دي. انشاء الله دوه ساعته بعد به بیرته په کابل کښي يي. زموږ و ستاسي انتظار نور هیڅ گټه نه لري.

تر څو گامه تگ وروسته نابېره زما د مشر ورور، زلمي، اخښي را پیدا سو. هغه هم د کندهار د هوایي میدان په یوه عسکري قطعه کښي منصبدار ؤ؛ او شېراحمدخان غوندي د میدان د صاحبمنصبانو په بلاکو کښي اوسېدئ. زموږ، په تېره بیا پلوشې او کوچنیانو په لیدو ټینگ سو، چي خامخا به باید شپه له دوی سره تېره کو. شېراحمد خان د صادق خان د ټینگار جواب نه لاره؛ خکه يې نو رخصت واخیستئ؛ او د خپل دفتر پر خوا رهي سو.

پلوشې د صادق خان په اپارتمان کښي د چایو چښلو پر مهال و اسمان ته سترگي شخي نیولي وې، چي که گوندي په دې توگه کابل ته د پلار وړونکې الوتکه په سترگو و ویني. څو دقیقي وروسته یوه ټرانسپورتي الوتکه په فضا کښي را ښکاره سوه. احسان لالا په خندا ور ته و ویل:

– چؤرت مه وهه، دلته طیارې ډېري پورته کښته کیږي. انشاألله دوه ساعته بعد به دي پلار بیرته د کابل پر مځکه گرزي. زه یوگړی وروسته دفتر ته ور ځم؛ کابل ته بې د رسېدو په باره کښي له خپلو همکارانو څخه په مخابره کښي خبر واخلم.

شپه مو د صادق دوی سره تېره کړه. د صادق خان او مېرمني پر زیات ټینگار سربېره، ما، پلوشې او کوچنیانو سبا سهار د مالیم صاب قادر جان دوی وکور ته د رهي کېدو په تیامت تیاری وکئ. پلوشې د پاکستان د اوږده سفر دپاره له کابل څخه راوړې شنه چادري پر سر کړه. احسان لالا او صادق خان د هوایي ډگر و مخ ته د ښاري موټرو تر تمځای پوري د سامانو په لېږدولو کښي مرسته را سره وکړه. پلوشه او کوچنیان موټر ته و ختل؛ او ما هم په ډک ستوني له احسان لالا او صادق خان سره خدای پاماني وکړه. دوی دواړه بیرته و خپلو رسمي کارو ته رهي سول؛ او زموږ اته کسیز موټر هم په څو شېبو کښي د کندهار ښار پر لور حرکت وکئ.

د لاري په اوږدو کښي بیا هم د دښت د خود رویه گلانو او بوټو روح تازه کؤنکو عطرو، د سؤر مشوکو زرکو له نازه ډکو ځغاستو، د خړ رنگه تاروگانو کښته الوتنو، د خړو ټکیالییو اگنانو او تور غاړو جلانو زړه وړؤنکو رېزونو د ټولو سپرلییو پر زړونو غلبه کوله.

په لار کښې تر دوراهي پوري چپه چپتیا وه. څو دقیقې وروسته د ښار له جنوبي یا جنوب – لوېدیځو برخو څخه د ویشتل سوو توغندیو وحشتناکو ږغو په موټر کښې د خاموشۍ فضا ګډوډه کړه. فضل خدایه فضل! د موټر د راسته لاس د منځ په چوکۍ کښې ناست سپینږري (سپین ږیري) په لوړ اواز و ویل.

که څه هم زه، پلوشه او کوچنیان په کابل کښې د توغندیو له زړه چاودوونکو ږغو سره ښخوا لا پوره اشنا وو، خو د دغو توغندیو په اوازو تر هر بل وخت ډېر و بېرېدو.

دا د ظالم زامن مو اوس په نیمی لار کښې مړه نه کي. په زړه کښې مي و ویل. د توغندیو اوازونه ډېر ژر کرار سول. موټر په خیر او سلامتۍ له عیدګاه دروازې سره و درېدئ. مسافر پر بېلابېلو لارو خپاره سول. موږ هم په څو دقیقو کښې خپل مختصر سامانونه د یوې لاسي کراچۍ په مرسته د مالیم صاب دوی تر کوره و رسول. د مالیم صاب مور، مېرمني او لوښو زما، پلوشې او کوچنیانو تود هر کلي وکئ.

د ښځمنو تر منځ لا خبري او مرکي رواني وې، چي نابېره دروازه و ټکېدله؛ او مالیم صاب قادر جان له خپل نوي چینایي بایسکل سره کور ته راننوتئ.

– مدیر صاب! دا دئ موږ خو د یوه پر ځای څلور راغلو.

– خدای مو هر کله راوله! خپل کور مو دئ.

– ما فکر نه کاوه، چي کوچنیان به دي دونه ژر کندهار ته را و رسېږي. پر خدای ګران یې، چي په ډېر انتظار یې سترې نه کړې.

– مدیر صاب! ناحقه یې نه دي ویلي: بنده اریان خدای مهربان. زه په خپله هم و دې مامله (معاملې) ته ډېر چورتي او فکرمن وم. مګر د خدای تعالی وکارو ته ګوره، کله چي میدان ته ور و رسېدم، یوه روځ مخکې احسان لالا په دوی پسي کابل ته ورغلئ ؤ. یوه شپه یې په کور کښې تېره کړې وه، په دا سبا ګرده په ګډه کندهار خوا ته را رهي سول. خُسر بابا را ته ویل: موږ په ټلیګرام کښې فقط ستا د ضرورت وړ کتابو یادونه کړې وه. ستا د راتګ تصور مو هم نسوای کولای؛ حال دا چي ما د کتابو یادونه وکندهار ته د دوی د را رهي کېدو شیفر و باله: او په خفاسته مي خان ور ته را و رساوه.

– په دې حساب خو نو دا غلطپامي بې ګټې نه وه.

– یقیناً.

– ښه نو، دا دوې شپې مو چیري تېري کړې؟

– یوه شپه د احسان یوه ښخواني همصنفي مېلمه کړم، چي ما هم له ډېره ښخوا څخه پېژندئ. برای شپه مو بیا د زلمي له اخښي سره تېره کړه.

– د زلمي اخښي مو بیا چیري پیدا کئ؟

– د خدای تعالی برابري وه. په همدې میدان کښې مو سره و لیدل. ما خو کله لیدلئ هم نه ؤ. د احسان په لیدو یې موږ هم و پېژندلو او ټینګ سو، چي شپه باید ارؤمرؤ له دوی سره تېره کو. نن بیا ګوره قسمت ستاسي تر کوره را و رسولو.

– ولي دي احسان هم نه در سره را وستئ؟

– ستاسي د دوکان ادرس یې را څخه واخیستئ. ول (ویل یې) که ژوند ؤ، انشاء الله په نیژدې وختو کې حتماً و لیدو ته ور ځم.

مازیګر د ارغسان د لاري په اړه د مالومات اخیستلو دپاره، له آزرَجي بابا سره د چمن د موټرو و اډې ته ورغلم. په اډه کښې چپه چپتیا

وه. تر څه ځنډ وروسته يو سړی د اډې له يوه دوکانه را و وتی. تر دوعا او سلام وروسته يې د چمن د لاري په باره کښې را ته و ويل:

– وروره! د چمن د لاري چندان خوند نسته. ځينې موټران تر ترنک پوري ځي، ځينې تر ارغسان پوري، مگر چمن ته لا تر اوسه هيڅ موټر نه دی تللی. د ارغسان اوبه تر اوسه لا دونه نه دي، چې موټران تر پوري وتلای سي. دوې– درې ورځي صبر وکه. انشاالله اوبه به را کښته سي، بيا په خير حرکت وکه.

د دې خبرو په اورېدو سره مې طبيعت يو څه خپه سو.

– څه تلوار دي اېښی دی، چې بيا د موټرانو په مالومات اخيستو پسې تللی وې! ماليم صاب قادر جان، کور ته تر ور ننوتلو وروسته را ږغ کړه.

– مور هم تر گرده داغه ور ته وايو، چې يو څو ورځي دلې تېري کې. د ماليم صاب مور او مېرمنې په گډه ور غبرگه کړه.

– زمور هم زړه غواړي، چې يو دوې– درې ورځي پاته سو، خو د کار غم را سره دی. اوس لا اوميد نه ور ته لرم. که ډېري ورځي ور نسم، خامخا مي پر ځای بل څوک دريي. په کراچي کښې کارونه په ډېر تکليف پيدا کيږي. د کور کرايه، د صفايي محصول، برق، گاز، اوبه او نور خرڅونه په بېکارۍ کښې نه پوره کيږي.

– انشاالله خدای به هر څه اسانه کښي. ته و دربېره، چې لار خو خلاصه سي. ماليم صاب په نسبتاً جدي لهجه و ويل.

مابنام د ډوډۍ پر مهال د ماليم صاب له ځُسرخېلو څخه يو ځوان راغئ، چې عبدالصمد نومېدئ.

– هارون جانه! چۆرت مه وهه. عبدالصمد هم کۆټي ته ځي. په لار کښې به کومک در سره وکي. د قادر جان مېرمني په خندا را ږغ کړه.

– دا خو ډېر ښه کار و سو، چې د لاري ملگری هم پيدا سو.

که څه هم برايي شپه د تالاندي او برېښناوو په غرمبهار او پړکهار کښې د تېز اورښت يوه هيښمه تېره سوه، خو صمد جان سره له هغه هم ډېر زړور ښکارېدئ.

– صمد جانه! د لاري د خلاصېدو په باره کښې به څه نوی حال نه لرې؟

– شې لا نسته وروره! د پاکستان لار هيڅ وخت نه ده بنده سوې.

– صمد جانه! درې– څلور ورځي دمخه خو ارغسان داسي غاړي غړۍ بهېدئ، چې چا يې له کتلو څخه تراه کوله. اوس نو ته په څه دليل وايې، چې شې لا نسته؟ داسي ښکارېدله، چې صمد جان د ارغسان په وروستي سېلاو او توپان شک لا نه ؤ.

– وروره! د ارغسان اوبه دونه دوام نه کيي. په دوو– درو روځو کښې د سړي تر زنگانه لا کښته کيږي.

– هارون جانه! څه خدای در باندي اېښې ده، چې سم کور اوکهول پرېږدې، ناحقه و سلو خطرو ته ځان ور کيې! صمد جان خو د خپل سر پاچا دئ. نه ښځه ور سره ده، نه کوچنيان، نه غۆټي او سامانونه. ماليم صاب په دردمنه او جدي لهجه و ويل.

– مدير صاب! چې زه ور سره يم، هيڅ هم نه په کيږي. عبدالصمد په باټ او غرور سره جواب ور کئ.

يو گړی وروسته ما او پلوشې په غۆته او غۆړاشه لاس واهه؛ او سبا ته مو د تلو تياری کاوه.

– مانا دا چې خامخا ځی. ماليم صاب قادر

جان له ليري په خندا راړغ کړه.

- مدير صاب! د هوا د سمېدو ډَرَک نه مالوميږي، نګانه نور سېلاۋنه را نه سي؛ او په هفتو دلې بند پاته نه سو.

- نو څه خبره ده. خپل کور مو دئ. تر هغه مهاله، چې هوا نه يي سمه سوې، دلې پر ارامه کښېنئ.

- که د وظيفې غم نه واى، حتماً مو دغسي کول، خو اوس وچه کلکه مجبوري ده. سبا مو په خير زړه دئ، چې حرکت وکو.

- ښه نو چي نه پاتېږئ، سهار وختي به د يوه موټر يا رخشې بندوبست در ته وکو.

- سلامت اوسئ.

سبا سهار وختي له صمد جان سره يو ځاى په دوو رخشو کښې د چمن د موټرانو و اډې ته ولاړو.

- زه خو د ښځمنو او کوچنيانو د ارام سفر او د سامانو د خونديتوب په خاطر تر کوچنې ډاټسنانو او پيکپانو دا (۳۰۲) سروېس ډېر بهتر بولم. صمدجانه! څه دي پکښې و ويل؟

- هر يو چي ستاسي خوښ يي، هغه سهي دئ.

(۳۰۲) سروېس له اډې څخه د ډامبر سړک تر پايه داسي پوست او ارام رفتار کاوه، چي تا به ويل د شاهانو پر پالنګ بيده يم. کله چي تر «ښارِ صفا» لړ را په ايسته له پاخه سړک څخه د کندو او کډو و خوا ته واوښتئ، ډېر ژر د موټر د باډې، په تېره بيا کمانيېو د چيو چيو ړغونه پورته سول. په ټوله لار کښې هک اريان وم، چي د (۳۰۲) مالِک څنګه پر دې ګړنګو او کړلېچو د خپل نازولي سروېس و چلولو ته اجازه ور کړې ده؟ وروسته به مي په دې متل ځان قانع کئ، چي وايي: «مجبور ته مه وايه غښتلې.»

(۳۰۲) سروېس تر ترنک په اسانۍ واوښتئ؛ خو تر ارغسان يې پوري وتل په شک کښې را ته برېښېدل. که څه هم د دښت په لوړو او ژورو کې د زړه په زور مزل کاوه، خو مساپرو ته سره له هغه هم تر کوچنييو موټرانو ډېر هوسا او بې تکليفه ۋ.

د لاري په اوږدو کښې مي څو پلا و ژړه ته د کمي خطرناکي سانحې د پېښېدو بېره راتله. له ځانه سره به مي لاحول و لاقوت و وايه؛ او په کمه بله خبره به مي ځان اخته کئ. سروېس، تر څو ساعته ربړۋنکي سفر وروسته بالاخره د ياغي ارغسان و غاړو ته و رسېدئ. د اوبو د شرنګوالي دپاره بې اختياره له خپلي چوکۍ څخه را پورته سوم. اوبه تر پخواني توپاني حالت ډېري کښته مالومېدې، چي په ليدو يې ډېر خوشاله سوم. سره له هغه هم موټروان څو شېبې وروسته نابېره سروېس و دراوه.

- ورونو! ټول کښته سئ. تر دې وآخوا ته نه سو تللاى.

- استاذه! زموږ سره خو سياه سره او کوچنيان دي، دا به څنګه سي؟!

- د خداى بنده! اوس هم په خپنو ځايو کښې اوبه د سړي تر غاړې رسيږي. (۳۰۲) خو څه کېږي، چي ماشين يې کښته دئ، د دونيا يو راز موټر هم تر دې اوبو نه سي پوري وتلاى.

ما او صمد جان هم د موټروان د دې رد او رُک جواب په اروېدو سره خپلي غوټي او بستې پر شا وا ړولې؛ او د نورو مساپرو تر شا د رود پر خوا ور رهي سوو. له کوچنيانو او سامانو سره مو تقريباً درې سوه ميتره لار په کاڼو، ولاړو اوبو او شګو کښې و وهله. د رود غاړي ته په رسېدو سره مالومه سوه، چي د مساپرو د اړولو را اړولو دپاره د يو ځپر وزمه جالې بندوبست هم سوئ دئ. په

لیدو یې ډېر خوښ او ارام سوم.

– ته ناحقه وارخطا وې! ما در ته ویل، چې پر لار هیڅ کیسه نسته. صمد جان په ډېر باټ او غرور راېغ کړه.

– د هر بل وخت پر خلاف مي دا وار پر جواب ور کولو ژبه نه خلاصیدله. ښایي پر ذهن مي تر اوسه لا هغي خیالي تراه کرغېړن سیوری غوړولئ ؤ، چي په کندهار کښي د چمن د موټرانو له اډې څخه بیا تر دې دمه د ټولي لاري په اوږدو کښي را سره وه.

زه، عبدالصمد، پلوشه او کوچنیان تر ټولو مساپرو وروسته د رود وغاړي ته و رسېدلو. که څه هم د رود اوبه تر پخوا ډېري کښته سوې وې، خو سره له هغه هم ځینو مساپرو د بیري او وحشت په ډَول په لوړ اواز وویل: « فضل دي وسه! دا څه خري اوبه دي، چي دونیا یې پر سر اخیستې ده.» له څو گوتو په شمار زړورو ځړه ځوانانو چپه، چي پر یو لنډ گوډر پوري وتل، نور ټول مساپر کرار کرار د همدې جالې او جالوانانو په کومک تر ارغسان واوښتل.

زه، پلوشه، ولوله، زرغونه او عبدالصمد یې گرده له سامانو سره یو خای، په یوه پلا و جالې ته و خېژولو. جاله چي د وچو ښاخلو او پړوړو یوه کوچني څپر ته ورته وه، له لاندي خوا د موټر په دوو پړسېدلو ټوپانو او په پورتنۍ برخه کښي په یوې ظاهراً مزبوتي رسۍ پوري ټړل سوې وه. لړزېدونکې او بې ثباته جاله د دوو جالوانانو له خوا د رود له یوې غاړي څخه و بلي ته کشَوَل کېدله. د خوندیتوب له اړخه د خورا زیاتي اندېښنې ور وه؛ ځکه د سپرلییو د لوېدو د مخنیوي په مخسد یې هیڅ ډول دېوال یا حفاظتي مېکانیزم نه لاره. سره له دې هم د غرو او دښتو په زړه کښي د لالهانده مساپرو، په تېره بیا ښځمنو، کوچنیانو، سپینږرو او ناروغانو د اړولو را اړولو یوازنۍ اسانه وسیله گڼل کېدله. موږ هم نورو مساپرو غوندي بې سوچ کولو ور و ختلو. دا مهال د سیند پسور د شلو– پینځه ویشتو میترو په شاوخوا کښي ؤ، چي ټول ټال تر لسو– پینځلسو دقیقو زیات مزل نه ؤ.

ناموزه جالې د وزن د زیاتوالي او د اوبو د پیاوړي فشار په وجه د رود نیمایي ته په رسېدو سره خطرناکي جټکې پیل کړې. ما په یوه لاس دواړې لوښي او په بل لاس پلوشه تر چادرۍ ټینگه نیولې وه. صمدجان د سامانو د خوندي ساتلو مسؤلیت پر غاړه اخیستئ ؤ.

د جالې بې سوَره جټکې او تکانونه وار په وار زیات سول. په دغو شېبو کښي د جالې د انډول ورانېدو له اسیته، نابېره پلوشه له خپلي دوه منۍ چادرۍ سره د رود و نسبتاً تېزو او ژورو اوبو ته ور و لوېدله؛ او په دې توگه هغه بدشگونه سانحه پېښه سوه، چي په گرده لار کې زما پر ذهن لوی روحي بوج ایښئ ؤ. د پلوشې په لوېدلو سره نه یوازي په موږ، خاصتاً کوچنیانو کښي د وحشت او بېري فضا خپره سوه، بلکي د رود و دواړو غاړو ته ناستو او ولاړو مساپرو هم په ډېري وارخطايۍ سره لویي چیغې او نارې شرو کړې.

د پلوشې په لوېدو سره مي سمدستي د ولولې او رنگینې لاسونه ایله کړل؛ او ببله ځنډه له لونگۍ، پټو او بوټو سره و اوبو ته ور و غورځېدم. چي سترگې مي اړولې تېزو اوبو پلوشه بېچارگۍ درې– څلور میتره ولغړوله. البته، که ژر نه وای پسي ور غورځېدلای، له دې کوچنۍ حادثې څخه خدای مکړه ډېره لو تراژیدي پېښېدلای سوای.

ناځوانه جالوانان د پلوشې تر را پورته کولو څو دقیقې وروسته، اوبو ته را ښَوَه سول؛ خو سره

له هغه يې هم دونه و نه کړل، چې څو ميتره آخوا د رود له منځه زما لونګۍ او ژمنی پټو را و باسي. د پلوشې تر را ايستلو وروسته مې، دوهم وار په خپله له روده را و ايستل.

پر پدره دي د دې ډول جالې لانت (لعنت) سي. که مې مخ لڅ کړئ وای؛ او په خپله په اوبو را ګډه سوې وای، تر دې جالې به په ډېره اسانۍ را پورې وتلې وای. پلوشې په ډېر قهر او غضب وويل.

نامردو جالوانانو حتا د ولولې او زرغونې و خونديتوب ته هم هيڅ پام و نه کئ. په داسي حال کښي، چې کړرو او غلبلو يې په شاوخوا فضا کښي ژور انعکاس کاوه، ښايسته ډېر وخت د جالې له پاسه د رود په منځ کښي بندي پاته وې. عبدالصمد بېچاره هم له ډېره سامه د پېښې په جريان کښي دم و دوُد ناست ؤ. له جالې څخه يې د سامان را کښته کولو پر مهال را ته وويل:

– پام کوه چې دې دوُسانو او مُرده ګوانو ته يوه روپۍ ور نه کې! دا خوارکۍ (مخسد يې پلوشه وه) خو يې نيژدې وژلې وه. که څه هم د جالوانانو په اړه د عبدالصمد مشوره ببخې سمه او دقيقه وه، خو د جنګ او داوې (دعوې) د مخنيوي په خاطر مود دوی له نرخ و نوا سره سم د غټانو پر سر درې درې سوه او د کوچنيانو پر سر دوه دوه سوه افغانۍ کرايه ورکړه.

– د خدای بنده ته مي بيا عجب سړی و ليدې، چې ودې ناخوانانو ته دي هم پوره پوره کريه ورکړه.

– صمد جانه! که دوی شرم او حيا ولري، دا کرايې يې مرګ دئ. دا خلګ يوازي د خپل جېب په فکر کښي دي. ځيني ځيني خود خپل خان د خونديتوب په خاطر د نورو ژوند او راحت هم په اور پور ي کيي. ته وګوره،کې خلګ د کندهار او چمن پر ډامبر سړک پرې ښوولای،اوس به ولي داسي خوارۍ پېښېدلای؛ و لي به نارينه او ښځي تر دښتو او رودو پوري وتلای؛ ولي به دا دونه موټران په دې خړو اوبو کښي ډوب ولاړ وای.

– ريشتيا وايې! د خلګو څه ګونا ده، چې په دې دښتو او رودو کښي رنګارنګ خطرونه پر سر اخلي. صمد جان د سر په ښورولو سره و ويل.

د ارغسان د رود له پوري غاړي څخه د شاوخوا سلو ميترو په فاصله د چمن او کوُټې څو موټران ولاړ وو.

– وروره! که کوُټې ته ځئ. دغه موټر ته در وخېژئ. کلېنر په لوړ اواز را ږغ کړه.

موږ هم په دې هيله ژرترژره و هغه موټر ته ور وختلو، چې کوُټې ته تر رسېدو وروسته به سيده د کراچې په سروبس کښي کښېنو. په څو شېبو کښي موټر دکوُټې لار په خوله ورکړه. تقريباً څلور – څلور نيم ساعته وروسته و کوُټې ته ورسېدو.

– صمد جانه! کېدای سي زموږ سره د کراچې تر اډې پوري کومک وکې؟ تا به له هغه ځايه څخه په خير کور ته رخصت کو. موږ به د کراچې پر خوا ور رهي سو. له صمد جان څخه مې دکوُټې په اډه کښي پوښتنه وکړه.

– د خدای بنده! ولا که ګام لا واخلئ. نن شپه به خامخا زموږ سره تېروئ، سبا په خير به پر ارامه و کراچې خوا ته ور روان سئ. ته دا کوچنيان وګوره، چې د خوبه يې سترګي پټې پټې کيږي او ته د کراچې اوږده لار وګوره. تاسي به هم ستړي ستومانه ياست.

– صمدجانه! د ستړيا او ستومانۍ خبري پر پرېږده. زه خپله خو دونه ادوُبدوُ يم، چې د خبرو حوصله هم نه لرم. باور لرم چې د ټولو دغه حال دئ. تيار د کراچې د سروبسانو د رهي کېدو پر

مهال را رسېدلي يو. شپه مو په سفر کښې تېرېږي، سبا سهار په خير کور ته رسيږو. انشاًالله هورې به بيا ستړياوي او ستومانۍ باسو.

– راځئ نن شپه زموږ د غريبۍ کور وګورئ. ما ته دوغنه دَرَک را مالوم دئ، چې د کراچې اوکوټې د خلګو ژوند ډېر پَرَک(فرق) لري؛ خو په يوه شپه سړی نه په تکليف کيږي.

د عبدالصمد د دې خبرو په اورېدو سره مو مجبوراً نخشه واړوله؛ او له دوی سره په شپې تېرولو راضي سوو.

– ښه نوصمد جانه ستا د ټينګار په خاطر به نن شپه ستاسي سره تېره کو.

– خدای مو راوله. زما مور او خور به هم د ورېنداري په ليدو ډېره خوشاله سي.

شپه مو د کوټې په «کاکړ کالونۍ» کښې د صمد جان دوی په کور کښې تېره کړه. مور او خور يې په ريشتيا هم زموږ د ورتلو تود هرکلی وکئ. که څه هم دوی ټول ټينګ وو، چې دوې – درې نوري شپې هم ور سره تېري کو، خوموږ له خپلي ناچارۍ څخه سبا سهار د صمد جان په ملګرتيا د کراچې ټکيسان (ټکيټونه) رانيول؛ او مازيګر يې په سفر ور رهي سوو.

سبا وختي سهار وکراچې ته و رسېدلو. تر هر څه مخکې د دوعا و سلام دپاره د خاله د لور کره ولاړو. کله چې مو خپل اپارتمان د ور تګ تکل وکئ، د خاله لور مې را ته وويل:

– هغه کور خو اوس بل چا اخيستئ دئ.

– عجبه ده اګريمينټ (قرارداد) زموږ سره پروت دئ؛ خو کور بل چا اخيستئ دئ؟

– دا پاکستان دئ. هر چا چې و مالِک ته ډېر اډوانس (پېشکي پيسې) او ډېره کرايه ورکړه، په سبا يې کور و هغه سړي ته ورکول کيږي.

– زموږ اډوانس او سامانونه يې څه کړل؟

– ستاسي اډوانس او سامانونه يې موږ ته را تسليم کړل. په هغو پيسو مو په ټي بلاک کښې يو بل فلېټ (اپارتمان) در و نيوئ. سامانونه مو هم هورې پراته دي؛ خو کور هم ډېر خيرن دئ هم چپه.

– خيرن کور خو به سړی پاک کي، مګر په دې ښار کښې خو د چپه کور زحمت يوه ورځ هم نه ګالل کيږي. دا مؤمنان خو به، په چپه کور کښې پوستونه واچيي.

– اوس خو هيڅ چاره نه لرئ، که ښه دئ که بد، ستاسي ور تګ دئ. يو څو ورځي دلې ګوزاره وکئ، خدای مهربانه دئ، بل پاک او هواداره کور به در پيدا سي.

سبا سهار په ډېره اندېښنه او تلوسه و فابريکې ته ولاړم. پر همکارانو او يارانو سربېره مې د فابريکې مالکانو هم په ور تګ ډېره خوښي و ښووله. ښايي د خوښۍ اساسي دليل بې دا وُ، چې په نسبتاً لږ وخت کښې بيرته وخپل کار ته حاضر سوئ وم. څه موده وروسته، د چټل او چپه کور ناخوالې هم په خيراو خوشالۍ ختمې سوې.

د دغو خاطرو ټول جزييات، ښځه خينو نوم اليشؤنو، عيني واقعيتونه دي. له هغه مهاله تر اوسه لږ و ډېر پينځه ويشته کاله تېرېږي. په دغه مؤده کښې د کيسې د ځينو کرکټرو په ژوند کښې خورا لوی او ژور بدلونونه پېښ سول، چې بشپړه او هر اړخيزه يادونه يې د دې ليکنې تر حوصلې وتلې خبره ده؛ خو تر ټولو خواشينؤنکی بدلون دا دئ، چې سبحان او ګل احمد دواړو ځوکاله مخکې، په ځوانه ځواني يو په بل پسې، له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې. اناالله وانااليه راجعون. لوی څښتن دې د دواړو ارواوي ښاده لري.

نور بيا ...

عبدالظاهر څرک

# دوه یادونه دوې خاطرې



## څلمی پټیال

د طالبانو د حکومت په دوران کې مرحوم استاد رشاد صاحب کندهار ته راغلی وو. د ده کور ته به موږ په هفته کې څو واره ورتلو او د ده له خوارہ مجلسه به مو زیاته استفاده کوله.

یوه ورځ مې د مېلمستیا بلنه ورکړه، په ورین تندي ئې ومنله او د غرمې له خوا کور ته راغلل، چې د استاد زوی ډاکټر طارق رشاد، احمد صمیم، طالب صاحب، عبیدي صاحب او نور دوستان هم راغلل.

د بېنوا فرهنګي ټولني غړي، چې مشر ئې محمدیار وو او دفتر ئې د موسی خان جامع پر مخامخ وو تر ډوډۍ وروسته دا ډله هم د استاد د ملاقات له پاره راغلل. محمدیار، عبدالقدیم پټیال، عزت الله پېژاند، خلیق صاحب او ملا بهاء الدین الهام مې په یاد دي. د طالبانو د حکومت د سختو بندیزونو په خاطر چا د کېمرې راوړلو جرئت و نه کړ، او یوازې دغو ځوانانو د ټیپ ریکارډر آله راوړې وه، چې د استاد خبرې ټیپ کړي، مګر استاد ئې ممانعت وکړ او وې ویل چې که ټیپ وي آزاد مجلس نه سي کېدای.

پټیال کشر وو، رېره او برېت ئې نه وه، استاد رشاد له ځوانانو څخه پوښتنه وکړه، چې: "د پښتون فردوسي په باب مقاله او تحقیق په تاسي کې چا کړی وو؟" دوی پټیال ور په ګوته کړ. استاد راولاړ کی او پر تندي ئې مچ کی.

زما مشر ورور احمد صمیم چې به کله کله پټیال ولیدی نو د ټوکي په ډول به ئې ورته ویل: "ته خو هغه یې چې رشاد صاحب مچه درڅخه واخیسته". دی به له خندا شین سو. ول: هو ولا.

## د پټیال دواده ورځ

په خوشبخت مانۍ کي د پټیال د واده ورځ وه. واده ته ئې د کندهار اکثره فرهنګپال او علمي څېرې خبري کړي وې.

زموږ عموم خلګ چي په واده کي ډوډۍ وخوري داسي په تلوار له سالونه وزي لکه یو چا چي سوټي پسي را اخیستی وي. دې ته نه ګوري چي د واده خاوند په کارډ کي ورته لیکلي وي چي زموږ سره په دې خوشحالۍ کي برخه واخلئ.

پټیال په دروازه کي ولاړ وو، هغو خلګو ته چي وتل به تر ټینګ روغبړ وروسته ئې د مننې مراتب څرګندول. ما او زما مشر ورور احمد صمیم ته ئې تر فوق العاده وضعیت وروسته وویل، چي: تاسي ولي راولاړ سواست. یو ګړی مي مجلس درسره کاوه.

صمیم صاحب ورته وویل چي: نن شپه خو نو ستا شپه ده، او د جهاني صاحب دا بیت ئې ورته ووایه:

شیخه مه راځه مشحر دئ مستان سوځي
تر پایه پوري ...

پټیال وخندل، ما ورغبرګه کړه، چي هغه شپه نن نه سبا ده، چي د واده دوهمه سي.

پر دې خبره پټیال ډېر وخندل او رخصت مو ځني واخیست.

خدای تعالی دې جنتونه په نصیب کي!

زموږ ګڼې دولتي او اجتماعي هڅې د تظاهر ښکار دي. تظاهر ته ځکه ځان محتاج وینو چې حقارت او نیمګړتیا احساسوو او د نیمګړتیاوو د دوام یو اصلي علت دا دئ چې واقعبین نه یو، پر خپل حقیقت باندې اعتراف نه کوو او دا نه منو چې په ګوړه ګوړه ویلو خو خوله نه خوږېږي.

تر دې له مخه چې دېوالونه سپین کړو، د ځان سپینولو ته ضرورت لرو. زموږ د نظام او دولت ګټه په دې کې نه ده چې یوازې په دولتداري باندې تظاهر وکړي او ارقام کال په کال زیات وښیي. دولت باید له ځان سره او اولس سره سپین او واقعبین واوسي او دا وګوري چې ادارې او پروژې ئې ګټوري دي که بس هسې رواني دي.

پوهان وایي چې ژبه او فکر د یوې سیکې دوه مخه دي. که فکر نه وای ژبه به نه وه او که ژبه نه وای فکر به نه وو. موږ له اوږدې زمانې راهیسې یوه اداري او دولتي ژبه لرو چې رسمیات ور باندې برابرېږي خو له دقت او واقعیت سره ډېر ځله سمون نه خوري. زموږ فکرونه د همدې رسمي ژبني او لیکني سبک په لومه کې ایسار دي. ایراني شاعر سهراب سپهري ویلي دي چې د بل ډول لیدلو له پاره په کار ده ستر ګې ووینځو. یوې داسې رسمي او اداري ژبې ته ضرورت لرو چې له سپینوالي او شفافیت سره مرسته وکړي. موږ په خپله رسمي ژبه کې وایو چې پر پلانی موضوع هر اخیز بحث وشو او لازم تصمیمونه ونیول شول. هر اړخیز بحث څنګه ممکن دئ؟ او لازم تصمیمونه کوم دي؟ موږ په خپلو رسمي خبرو او لیکنو کې د لازمو تصمیمونو، لازمو اجرااتو او لازمو اقداماتو خبري تکراروو خو ځان ته زحمت نه ورکوو چې د هر مورد لازم او غیر لازم سره بېل کړو. ګونګه ژبه او مبهمه ژبه یوازې د تېر ایستلو له پاره په کارېږي او هغه څوک چې بیا بیا استفاده ورنه کوي، معمولاً خپله هم تېر ایستل کېږي. د عربو د یوه مشهور طماع په باره کې یوه کیسه ده چې وایي پوښتنه ورنه وشوه چې د خپلې تمې او لالچ ډېره جالبه خاطره بیان کړي. ده وویل، یو وخت مې په ماشومتوب کې له هلکانو سره لوبې کولې. د لوبو په منځ کې مې د دوی د تېر ایستلو په نیت وویل چې په بر کلي کې خیرات دئ. هلکانو لوبې پرېښودې، بر کلي ته ئې منډې کړې. ما چې د دوی منډو ته وکتل په زړه کې راتېر شول چې هسې نه په بر کلي کې په رښتیا خیرات وي او زه ورنه بې برخې پاته شم، نو دومره تېزه منډه مې وکړه چې تر ټولو اول زه رسېدلی وم. د عرب طماع دغه ټوکه له کابو هر تېر ایستونکي سره کېږي.

وهم ته ځان تسلیمول په ظاهره دا ګټه لري چې د ترخو حقایقو د لیدو له مشکل سره مو نه مخامخ کوي، مګر په وهم کې چې هر څومره ډېره موده تېروو، د حقایقو تریخوالی هغومره زیاتېږي او لکه څنګه چې د سین او به د اوږدې مودې په مخه نه ډب کېږي، دغسې له ترخو حقایقو هم ځان د اوږدې مودې له پاره نه شو پټولای. دا او به باید خوشې کړو چې بند مو او به یو نه سي او د خپلو وهمونو په سېلاب کې لاهو نه شو.

